# III

## INDEX GÉOGRAPHIQUE.

### A



### ʿA



### B

C

D



G



H

I



J



K




IMPRIMERIE NATIONALE.

L



M



N

# IV

## INDEX ETHNIQUE[1].

### A



### 'A



### B



[1] Pour les tribus de Çvât et Bunêr, consulter Bellew, *A General report on the Yuzufzais*, Lahore, 1864.

J



K



M



N



ʿO

## P



## R



## S



## Y

# ERRATA.

**1**, titre, *au lieu de :* 1753, *lire :* 1761.

**1**, 3, 1, *au lieu de :* كغار, *lire :* كفار.

17, 2, *au lieu de :* ترله, *lire :* تولە.

27, 1, *au lieu de :* مخم, *lire :* غم.

**3**, titre, *au lieu de :* 1831, *lire :* 1829.

4, 4, *au lieu de :* غاری, *lire :* عاری.

**6**, 1, 6, *au lieu de :* تبنتتی, *lire :* تبنتی.

2, 5, *au lieu de :* رسكبش, *lire :* سركبش.

**8**, 1, 2 et refrain, *au lieu de :* اوری, *lire :* آوری.

**9**, titre, *au lieu de :* Akbar Shâh, *lire :* Ḥamîd.

1, 3, *au lieu de :* پلتنی .... تە, *lire :* پلتمنی .... نە.

4, 5, *au lieu de :* لو چتە, *lire :* او چتە.

**10**, 3, 1, *au lieu de :* آوری, *lire :* آوڑی.

4, 2, *au lieu de :* كرزمِ, *lire :* كرزم.

5, 4, *au lieu de :* بجلی, *lire :* جلی.

6, 4, *couper le vers à* قصاب.

**11**, 2, 4, *au lieu de :* تينك, *lire :* تمينك.

5, 4, *au lieu de :* تن, *lire :* نن.

7, 1, *rejeter* دِك *à la fin du vers.*

10, 3, *au lieu de :* نيبە, *lire :* نيمە.

11, 3, *au lieu de :* وای نور شعل, *lire :* وائ نور شعلی.

**12**, 1, 9, *au lieu de :* ډیلنه, *lire :* ډلینه.

**13**, 1, 3, *au lieu de :* جاری, *lire :* جاری که.

7, 1, *au lieu de :* پاپاب, *lire :* پاپاب.

**14**, 5, 2, *au lieu de :* زیره, *lire :* زیږه.

**15**, 10, 1, *au lieu de :* کوته, *lire :* کوټه.

14, 2, *au lieu de :* کوم, *lire :* قوم (?)

26, 2, *au lieu de :* أی, *lire :* آی.

34, 2, *au lieu de :* څشه, *lire :* څیشه.

**16**, 6, 2, *au lieu de :* بشبلاق, *lire :* پیشبلاق.

12, 1, *au lieu de :* مری, *lire :* مرئ.

17, 2, *au lieu de :* کلهی, *lire :* ګلهی.

**18**, 10, 1, *au lieu de :* کمینئ, *lire :* کمپنئ.

11, 1, *idem.*

12, 3, *au lieu de :* واخِلی, *lire :* واخلی.

**19**, 5, 1, *au lieu de :* چار مسئ, *lire :* چار میسی.

**24**, 15, 2, *au lieu de :* واغست, *lire :* واخست.

**28**, 4, 1, *au lieu de :* سردا, *lire :* سردار.

**41**, 1, 3, *au lieu de :* تحقیقه, *lire :* عقیقه.

**43**, 1, 1, *au lieu de :* بینا, *lire :* بنا.

**45**, I, 1, 1, *au lieu de :* ادم, *lire :* آدم.

**49**, IV, 3, *au lieu de :* خسړو, *lire :* ځنړو.

**59**, 4, 4, *au lieu de :* موزیانو, *lire :* د موزیانو ?

**65**, 2, 1, *au lieu de :* تنک, *lire :* تک.

**85**, 3, 3, *au lieu de :* اوړبل, *lire :* اوربل.

**88**, 4, 3, *au lieu de :* کتیم, *lire :* کتیم.

**92**, 6, 3, *au lieu de :* شمنیر ئ, *lire :* شمیزئ.

**99**, 3, 5, *supprimer* تنی غوس[1].

[1] Corriger dans la traduction en : Celui qui le mettra en pièces.

**99**, 5, 2, *au lieu de :* نر خنده, *lire :* تر خنکه.

5, *au lieu de :* ئی نکه, *lire :* بی ننکه.

**101**, titre, *au lieu de :* Yasîn, *lire :* Yâsîn.

3, 1, *au lieu de :* را شان, *lire :* دا شان.

**108**, VIII, 12, *au lieu de :* ورونړه, *lire :* ورونړو.

**113**, 31, *au lieu de :* د هر خا, *lire :* د هر چا.

40, *au lieu de :* هیچا, *lire :* د هیچا.

# د پښتنخوا د شعر

# هار و بهار

# د پښتنخوا د شعر

## هار و بهار

یوه مجموعه

د غزلو او چاربيتو د متلو او قصو د مصراعو او سندرو

چه د پېښور په ښهر او د ابټ آباد په چاونړۍ کښ

د فرانسس سرکار په حکم و فرمایش

سنه ۱۳۰۳ هجری

جم دَرمیستتر صاحب

جوړه کړه



په سرکاری مطبع کښ

د مشرق انجمن د پاریس په خرڅ

چاپ شه سنه ۱۸۸۸ عیسوی

# CHANTS POPULAIRES DES AFGHANS.

## PREMIÈRE PARTIE.

## CHANTS HISTORIQUES.

### 1

VICTOIRE D'AHMED CHÂH SUR LES MAHRATTES (1753).

GHAZAL DE BOURHÂN.

د احمد شاه بادشاه د جنګ غزل چه له مراتی
سره یعنی له باهو سره ئ کړی وه

1 احمد شاه بادشاه په جار وویله
د غزا په نیت ووزمه له کابله
2 پښتنی مغلی لاندی کړی کفارو
دا خبره پر په زړه وګرزیدله
3 یا به قتل کړم کفار په هندوستان کښ
یا به پری کړم کله پری باندی خپله
4 امیران وزیران واړه تری چاپیر وو
د غزا په مهم خوش شو یو تر بله
5 یو دیرش ورځی ئ نیته په مینځ کښ یښوه
په وړنبی ورځی ئ پیشخانه ئ وویشتله



IMPRIMERIE NATIONALE.

که مونږ شو خلاص د بادشاهانو له غوبله
19 د اټک په سینه ئې دوه پوله طیار کړل
بادشاه پوربوت مانجه ئې اختیاروله
20 هر سپاهي ئې له بریښونه کم نه وَه
دَ روتاس قلعه ئې بې جنګ واخستله
21 احمد شاه بادشاه غازي او هم سخي وَه
توله جسه ئې لکه شمعَ بلیدله
22 د باهو نه لکه فوج وريسي راغي
شب وروزئې خالي نه وه تعه له مزله
23 باهو وویل پښتون خما د جواب نه دي
د دي په زړه کښې لوئې ډیره تیریدله
24 چه مخامخ شو جنګ ئې جوړ کړ په میدان کښې
دوروخه ئې توپخانه وچلوله
25 سمندخان مؤمن‌خان دواړه شهیدان شو
د احمدشاه د زړګي ستن ونړیدله
26 اوه ورځي وَه تیاره بیا رڼاڼې شوه
د باهو تنه په رمکه لغړیدله
27 د مراتي په لور د مخمر ناري سوري شوې
د پښتانه توره ئې هاله ومنله
28 بادشاه جنګ وکړه هرڅوک پری خوشحال شو
بیا برهان ئې مدام ستائې له غزله

6 چه ډیرشمه ورځ پوره شوه بادشاه سور شه
په ډیرو اوښونۍ خزانه ولیګدوله

7 د بادشاه دری لکه لښکر څه سواره وو
د هندوستان په لاری تله واړه خوش دله

8 بادشاه څو ورځی مقام په پیښور شه
دَ اخون بابه په زیارت پروت دُعائۍ غوښتله

9 اولیاؤ پری غر وکه روانیږه
ستا عرضی شوله د خدائۍ په درقبوله

10 میان عمر صاحب له لاړ شه په سرتوری
په باطنه درسره دروی ځپله

11 بادشاه لاړ په څوکنو باندی دیره شه
دمیان عمر صاحب پښتنه ئۍ کوله

12 میان عمر صاحب وُه ناست په جماعت کښِ
د بادشاهانو هیڅ پروائۍ نه لرله

13 بادشاه لاس په نامه لاړ ورته حاضر شه
د اولیاؤ مرتبه ئۍ ولیدله

14 میان عمر صاحب پری ډیر ډیر مهربان شه
بادشاه سوریږه مدعا دِ وکتمه

15 دَ پیښور اولیاؤ واړه درسره شو
د برکت جنډه دِ پورته وخته

16 په اټک کښِ حضرتجی صاحب یادیږی
سلام ئۍ وکه یادوهٔ تل ترتله

17 بادشاه کوچ له څوکنو وکړ روان شه
د ده له ویری سمه ترله ولړزیدله

18 یوسفزی مندنړ به خدائۍ ته په زاری شه

3 روان شه یار محمد د امیرخان سره یارانو
توپونه تله په کاډو زنبورک په شترانو
بې عدله بادشاهي ده غوړۍ نشته د خوارانو
ډیره شه په نوښهر ستړکي ئې سري وی له ښاره روان شه

4 له نوښهره ځنی لاړ شه په زړه مینه مقام
په ټولو یوسفزو باندې خوبونه شول حرام
سید ورته زیده کښې جوړه وُ د عقل دام
مصری باندې له وراغی خبر شه له اسراره روان شه

5 مصرِی باندې نه تیر شه نُورۍ کم شه له کوکبه
خاونده یوسفزی مندنړ ښچاوکړی له غضبه
ویریږم چری مات نه شی د توپو له دبدبه
سید ویل ډیر شکر دی چه راغلی خما یاره روان شه

6 سردار د یوسفزو سره معلومی کړی خبری
پټ پټ سره جرګه قصی واوریدی حاضری
یوسفزو ورته ویل سید به کړو له خانَ لرِی
څپاوۍ په سنګر وکه ځۀ ځۀ شومه قلاره روان شه

7 بل به پیدا نه شی یار محمد غونډِ سردار
خزان پرِ باندې راغی شه په زمکه تار په تار
دورور کته به وکه د هرچا دی پری اعتبار
که راشی دوست محمد پسی رحم دل له قندهاره روان شه

# 2

**BATAILLE DE YÂR MOHAMMED KHÂN DOURANI CONTRE SAID AHMED (1830).**

**BALLADE DE NOUREDDIN.**

د يارمحمد خان دورانی جنګ چه له سيد بادشاه سره په
هندو کښی کړی وه چاربيته د نوردين شاعر چه د بربر
اوسيدونکی علاقه د پيښور

١ روان شه يارمحمد سيد وباسی له پنجتاره
سيد له بری ورکړی اِلٰهی پروردګاره
راغی اميرخان سرداره دربه کړمه زر
له ماسره روان شه يوسفزوته برابر
سيد رانه ملك واخست لاله وکتمه دوتر
زرپاخه روانيږه سستی مه کوه سرداره
روان شه يارمحمد سيد و باسی له پنجتاره
سيد له بری ورکړی اِلٰهی پروردګاره

٢ سردار ويل وطن به دله وکتم اميره
لاسونه مړله تاسره راخکلی دی په زيره
تاته به د سيد وکړمه له هِندوه هواګيره
په مخ کښی پيښخانه صباله کوچ کوم له ښره روان شه

فیض‌الله خان ویل په برخه بر تعزیر دی
ما ته په خوب کښې راحضور د مرګ زنځیر دی
ځما په وینو باندې سور باغ د وزیر دی
ما اندیښنی په سترګه ولیدې بیشماره
په خزان توئ شوی د تمام مهمند سرداره
د بلبلانو سترګی سری شوی له ژړاره

2 فیض‌الله خان له یو سری راغی یارانو
خانٙ دلبار له ئ بلعی سردارانو
ځان سنبال کړی وله ځما نوکرانو
کله به خلاص شو د تکانو له دلباره په خزان

3 دربار له ورغی خبره وه رنځوره
کوم خوا به خلاص شی له ما مه تښتنه تربوره
پیرمحمد خان ورته منګل یښی وه په توره
د بارکزو په دام کښې ونښتی هوښیاره په خزان

4 په دام کښې ونښتی چاپیره ناری سوری شوی
بیا به را نه شی مخکی دیری ننداری شوی
شهید له جوړی په جنت کښې مناری شوی
جړی رحم مغرور د شاه د غاری هاره په خزان

5 وریسی جړی فتح خان در د صدف دی
لکه افتاب هسی ښکاره په هر طرف دی
په سخاوت په عبادت کښې مشرف دی
په خوئ خوش بویه په مخ ګل عطاره په خزان

8 قاصدئ وُه ليږلى پيرمحمد پسى له وخته
را درومه په جلدئ خبره پيښه شوله سخته
تاويږى حسن‌خان لکه د سرو ګلونو لخته
بلبلى سري منګلى مروړى وران شولى دلباره روان شه

9 آسونه زنبوړك شهين خيمى شوى ورته پاتى
ختك خليل مهمند پياده راغله په ماتى
مانړئ د يارمحمد د خلقداد شولى ميراتى
ساته خاڼ نوردينَ د سيدانو له آزاره
روان شه يارمحمد شيد وباسى له پنجتاره
سيد له برى وركړى اِلهى پروردګاره

## 3

### MEURTRE DE FAIZALLAH KHÂN, CHEF DES MOHMANDS, PAR PIR MOHAMMED KHÂN, FRÈRE DE L'ÉMIR DOST MOHAMMED (1831).

#### BALLADE DE NOUREDDIN.

د نوردين اخون چاربيته چه د فيض‌الله خان مهمند اوسيدونكى د هزارخانى چه د تمامو مهمندو خان او نواب وُه او پير محمد خان د امير دوست محمد خان ورور په تكئ سره په خپل دلباركښِ وُوَژه

1 په خزان تويئ شوى د تمام مهمند سرداره
د بلبلانو سترګى سرى شوى له خماره

دَ اسلام ننګ نشته دَی غالب خلق ارزال دی نه
د زیړو توپی خلاصیدی پری شهینان مولوی

2 د زیړو توپی خلاصیدی چه دزهار وُه نه
مزکه آسمان شو ترکمی چه دوند غبار وُه نه
د مولوی صاحب په لاس کښِ ذو الفقار وُه نه
چه له مردود سره ئی شه جنګ په سپین میدان مولوی

3 چه له مردود سره شه جنګ د لعل محمد قندهاری
سیدانو مات وکړه حیران ولاړ کبری
دَ جنګ تدبیر ونه شه وَه هغه ورځ د لری
پوره ئی نه وَه ژوبل لاړ شه ناصر خان مولوی

4 دا ناصر خان غازی د توری یو مزری وُه خلقَ
غازیانو هیڅ کمی ونه کړه دیرئ لری وُه خلقَ
تکئ ئی وکړه هرچه نوم ئی کبری وه خلقَ
دیری ئی پورته کړی روان شو دا سیدان مولوی

5 سید احمد شاه بادشاه روان شه کوز شولګری وته
کفار پری دیر شو غلبه دی ئی پر نښو خبری وته
حورو بیالی ولړه راوړی زر تر زره وته
خدائ دِ له خیمی تاسو کاندی جنتیان مولوی

6 خوشحاله لاړه پیښور کښِ ظلم ډیر شه
ګل د تمیر فیض‌الله خان په زمکه زیر شه
په درست مهمند کښِ رنړا نشته مراور شه
قتلِ د جوړکه نه ویریږی له آزاره په خزان

7 زه نوردین اوّل صفت د کوم نواب کړم
د پیښور خانان به تول در ته حساب کړم
که در ښکاره د نسم خان عباس کتاب کړم
ارمان ارمان ه فیض‌الله خان د پګړیٔ واره
په خزان توئ شوی د تمام مهمند سرداره
د بلبلانو سترګی سری شوی له ژړاره

## 4

### SAID AHMED ET LES SIKHS,
### BATAILLE DE BALAKOT, MORT DU SAID.
#### BALLADE DE GOUL MOHAMMED.

## چه د سید احمد شاه غازی جنګ په بالاکوټ کښِ له سیکهانو سره شوی وُه د هغه چاربیته د ګل محمد شاعر دا ده

1 سید احمدشاه بادشاه دِ بولی بهرام‌خان مولوی
په کونهار جنګ دی کونهار شه په تا بوستان مولوی
سید احمدشاه بادشاه دِ بولی خنکه حال دی نه
ده وی مردود وهم راکړی خدایٔ اقبال دی نه

3 پیدا چه شه له وخته د عجب زوی شیطان
په غم کښې پراختر شه
زوی د فیروز خان وُه خواص خان د کل په شان
په زمین زیر زبر شه

4 پیدا چه شه له وخته خواص وُه ډیر خوشحاله
. . . . . . . . . . . . . . . .
رقمړ ئې وُه راوړی خپل دشمن ئې که دوجاله
افضل ته کوږ له ځیاله
زولوزو لړه چه ورغی هلته وُئې که ارمان
پر اکثر خلق خبر شه
زوی د فیروز خان وُه خواص خان د کل په شان
په زمین زیر زبر شه

5 مور له ئې سری لاړ شه د دهٔ نه رسیدهٔ زور
عباس بندی د گور
هیر مړ چری نه شی مامنزی شاهی خان
برهان له ځه قلندر شه
زوی د فیروز خان وُه خواص خان د کل په شان
په زمین زیر زبر شه

## 5

### MEURTRE DE KHAVÂS KHÂN, CHEF DES KHATAKS, PAR SON COUSIN AFZAL KHÂN.

#### BALLADE DE BOURHÂN.

چاربيته د فيروزخان ختټك د زوى چه خواص خان ئ
نوم وُه او په توره ډيرى كبښ اوسيده د افضل خان له لاسه
چه د زولوزوٌ اوسيدونكى وه ووژلى شه

١ زوى د فيروز خان وُه خواص خان دگل په شان
په زمين زير زبر شه
رنجيت پرِ حكم وكه د ختټك ېى ته سردار
په تا ېرِ اعتبار
غوړكيږده اى خواص ته ېرِ زوى شوى زه دِ پلار
وطن خوره په قلار
نوكر ما څخه شته دى دَ ايران دَ اصفهان
ستا غم څما په سر شه
زوى د فيروز خان وُه خواص خان دگل په شان
په زمين زير زبر شه

٢ زوى د فيروز خان چه له لاهور شه راسور
لښكر ورسره زور
اټك لره چه راغى دى روان په نيت دكور
بلبلو وكړ شور

مردار ئې کړه کُفار غوځ په تیرو تورو نادرو
بادشاه په قندهار زوکائې خیزی دَ لښکرو

3 کاغذ دَ هری سنګه وُه دَه لیږلی وُه سرکارته
را دروَمه برابر سیکهانو مخه کړه پنجتارته
غازیان دَ کوم مکان وِی عرضی کانو پروردګارته
وراغله عالَمِ مخامخ دیره شو ښهرته
چه ئې وُښکی مصری برق ئې جوړ که په اول کښې
چاوی چه دوست محمد غازی سنبال شه په کابل کښې
په مخ کښې تر تول تلی خرو دَسر ببرو
بادشاه په قندهار زوکا ئې خیزی دَ لښکرو

4 جکړه ئې سره وکړه ذات ئې ورك كه دَ سیکهانو
دیره ئې ورته وکړله سرو په بیا بانو
یورند ولی مړ شته په پا یمال کښې درندانو
راغی احمد ګل جوړ شه زلزل په شاعرانو
یو خل مړ بچیله غزا وکړی په اول کښې
چاوی چه دوست محمد غازی سنبال شه په کابل کښې
احمد ګل راغی په قهر شومَ شغالَ برو برو
بادشاه په قندهار زوکا ئې خیزی دلښکرو

## 6

### L'ÉMIR DOST MOHAMMED ET LES SIKHS.

#### BALLADE D'AHMED GOUL.

### چاربیتهٔ د امیر دوست محمد خان
### چه له سیکهانو سره ئې جنګ کړی وُه

۱ چا وی چه دوست محمد غازی سُنبال شه په کابل کښې
بادشاه په قندهار زوکائې خیژی دَ لښکرو
چا وی چه دوست محمد امیر راووت ځِی غزا له
فوځونه ورسره دِی بری ورکړی ذالجلاله
یوه ورځ محمد اکبر چه ورغی د سنګر خواله
دُښمن ئې شرمنده په مخ کښِ تښتتی بی سُنباله
خانَ ټِینګ دِ کړه اِسلام کلِمه ډال که په مُنګل کښِ
چاوی چه دوست محمد غازِی سُنبال شه په کابل کښِ
وُئې که جنګریز لړاو ئې جوړ کړ دَ شترو
بادشاه په قندهار زوکائې خیژِی دَ لښکرو

۲ جګړه ئې سره وکړه خما ګُلَّ په میدان
هلته شو ور ورانهِ دَ امیر غازِی سِپاهِیان
کولِئ د جزایئلو وریدی لکه باران
سرِرِ دِی د خدای په لورِی دورانی دِی اګدران
رسکښ ئې هری سنګه وُه چه راګیر شه په غوبل کښِ
چاوی چه دوست محمد غازِی سُنبال شه په کابل کښِ

3 تربور شه د انگریز د صاحب خومره خزانه دَه
خوراك ئ شکرانه جامه ئ واړه زرغونه دَه
قلعه ئ چارچوبئ په جماعت کښِ ئ ستانه دَه
منگل به د انگریز په وینو رنګ لکه باتور که

غزا پسی

4 منگل ئ دُ باتور صاحب کم نه دی له بادشاه نه
سلام له ئ راغلی دی راجگان له بدخشانه
په مخ کښِ ئ صاحب وریسی نه لکه نشانه
لښکر ئ غیبانه په انبیله به ځان حضور که

غزا پسی

5 حضور په انبیلی شه بیا صاحب وی ورته کوکه
دا ملك د پښتانه دَی ترینه څه خوك به دِ خوړ که
صوات بنیر ځما رعیت دی ترینه لری شه مشکوکه
صفت ځما د توری فرنګی د بهاولپور که

غزا پسی

6 بهاولپور کښِ فرنګی یوی ورځ د توره وکه لاف
دا ملك د پیښاور دی رب ورکړی دی انصاف
براته دی په ایرو کښِ که څوك پیښ شی پرِ صراف
ویل د احمدګل خلق په بیعه لکه دُر که
غزا پسی راغلی دی په کور ئ الله نور که
مولا د مشرق په هر طرف عبد الغفور که

# 7

## L'AKHOUND DE SVÂT ET LA GUERRE DE BOUNÉR.

### BALLADE D'AHMED GOUL.

چاربیته د احمدگل شاعر چه دَ تپکرئ اوسیدونکی دی
د صوات اخون صاحب په حق کښِ ئی ویلی ده چه له
انگریزو سرهٔ ئی په بنیر کښِ جنگ کړی وه

غزا پسی راغلی دَی په گور ئ الله نور که ١
مولا دِ مشرف په هر طرف عبد الغفور که
غزا پسی ئ راوستل گوجر له بلیجی نه
صاحب لړه راغلی دی خطونه له ماجی نه
زهیر شه فرنگی چه شه خبر له دی لانجی نه
مسواك ئ ذو الفقار ملك به په وینو بانډِ سور که
غزا پسی راغلی دَی په گور ئ الله نور که
مولا دِ مشرف په هر طرف عبد الغفور که

په بنی لاس ئ مسواك په کینړ منگذ دَه لگه ډال ٢
گولئ دی تسبی غوځول کاندی په اقبال
امسائ دَه نیزه پیشقوض تنړی پوری خلال
کوزه ئ تماچه ده خوله به ماته د تربور که

غزا پسی

4 مولیان مره شو را مدت شی آی د صوات صاحبه
اوښی پر خاخی برسات صاحبه
په عاجزانو باندې شوی دی فسات صاحبه
شه بنیر میرات صاحبه
لګه بُلبُلی چه یریګی په لښکر باندې
اوړی قتل ګر باندې

5 لګه لښکر هسی په دوی باندې شوری ګوڵی
دوی به ترِ موری کېږلی
له ویری تنګ شو چه غازیانو پرِ داړی کولی
بیل بیل به کاړی کولی
حلق پراته د برندو پدغه خور باند
اوړی قتل ګر باندې

6 ډیر به صفت کوم به خپلَ په لسان دَ ولیَ
پورته شه نشان دَ ولی
حورِ صفت کوی په زمکه په آسمان دَ ولی
مل ئ شه سبحان دَ ولی
نه حصاریګی مومنان پڅِی شوپر باندې
اوړی قتل ګر باندې

7 نه حصاریګی مومنان ترینه خطر نه کوی
توپی پرِ اثر نه کوی
ځان پرِ غازی کړیِ چهَ څوك دین د پیغمبر نکوی
بد دی چه باور نکوِی


IMPRIMERIE NATIONALE.

# 8

## LA GUERRE DE BOUNÉR; QATAL GARH.

### BALLADE DE HAMÎD.

## قتل ګړ

1 راغلی غازیان د فیرنګی پدغه ګړ بانډې
اوړی قتل ګړ بانډې

2 راغلی غازیان غزا له واړه لور پلور عالمه
ګډۀ کړ په شور عالمه
دا شادومخی خدای ورکړی ډی پکور عالمه
آخلی به تر خور عالمه
تورهٔ نه وه ډزی ورکړ په لوړ بانډې
اوړی قتل ګړ بانډې

3 تورهٔ نوه د اولیاؤ کرامت ورسره
ډیرئ وه قوت ورسره
مولا به حور وله ورکړی هم جنت ورسره
مرګ دَ شهادت ورسره
مولیان مړه شو غګ ئ خورشو په کنړ بانډې
اوړی قتل ګړ بانډې

باچ کته کښې عظم خان شه په لعنت
بدی وشوه د ډکی له زید الله نه
په انبیله کښې صاحب وشوه مقام
چه لښکری وله راغلی بیشماره

3 رحمت د پروردګار په صاحب باندی وریږی
په غزا کښې مرتبه کړله څرګندده
باباجی صاحب په براق باندی سوریږی
چه نامه د سید اکبر بادشاه بلندده
په لندن کښې فرنګیان تربینه ویریږی
په سورکاوی باندې پری وشوله ناپسنده
د باجوړ زلمی پرواړه کړل تمام
چه لښکری وله راغلی له قاشقاره

4 د لښکرو سره مل دی فقیران
یوسفزی کله ویریږی له دی جنګه
په بنیر کښې زوراور دی تول رندان
حکمتونه څکه هیر شو له فرنګه
د پیر بابا پالکئ لوچته کړه کهارانو
د بیچاوتړئ صاحب ئ هم و لاړ له څنګه
لاس په نامه زه حمید ګل یمه غلام
خلق خیر پر دی موندلی له درباره

زه اکبر شاه ملا ورزمَ په ملاتړ بانډو
اوری قتل کړ بانډو

# 9

## LA GUERRE DE BOUNÉR.

### BALLADE D'AKBAR CHÂH.

### د بنیر د جنګ چاربیته د حمید شاعر اوسیدونکی د ترنګړیٔ علاقه د پکلی ویلی دَه

۱ معامله جوړه شوه د کفر د اسلام
ته صاحب له بري ورکړی پروردګاره
د انګریز پلټنی راغلی کلکتی ته
ورسره خینی سیکان دبل ګوره ؤو
پښتنو ورته ویل چه په ځایٔ کښینه
بنیروال واړه د ملک په تراره ؤو
چملی وال وائی مونږ نه خلاصیږو دینه
دښمنان ئی په ملکا بانډی ښکاره ؤو
مجاهدین ورکوِی سر درب په نام
حوری لوټ کړی نه ویریږی له کفاره

۲ مجاهدین وائی خمونږ مرګ دَشهادت
په شهادت کښِ تیښته نکړو له میدانه
که راسره وِی د مړدانو کرامت
په غزا یسی راتلو له هندوستانه

2 کوڵۍ به د رفلو وریدی شوی ریز مریز
دېتمی و کمشنرته
فقیر دی معتبر ورسرنه کیږی جنګ وته
داك ئې و لیږه په بیرته
پلټنی د ګورو به په پیرجرل
هیش خلاصیږو به مونږ چرته
را آوری سنګر به مونږ ایسارنه دی غازیان
تیغ نه کوی اسرپسی
په سر د قتل کړ

3 را آوری په سنګر دَ دوئ خونه کړه میراته
په کړو کښ ئې کړه ګیر
صاحبه مبارك دِ شه وطن و ایمه تاته
سیرئ د صوات بنیر
د سیلمی یوسفزی په اقبال جمعه شه غزا ته
په بیرته ئې وکه فیرپه جهرو وِ چه مِ دښمن دَی عجب خان
انګریزمِ که کسکرپسی
په سر د قتل کړ

4 په جهرو وِ جرنیل چه سا مِ نشته په وجود کښِ
دا څه و شه فساد لښکرمِ شه کسکر نور به نه ګرزمِ په سود کښِ
رعیت مِ نه که صوات
مردار په کښِ خاونده د لاهور هغه مردود کښِ
په بیرته به شی مات
ملا ترو که په ښور دبرکلی ناصر خان
ورکه شه ماز دیګرپسی
په سر د قتل کړ

# 10

LA GUERRE DE BOUNÉR.

BALLADE DE NAWÂB JÂN.

## چاربیته د جنگ د بُنیر

1 په سر د قتل کړ فرنګی ډیر وکه ارمان
شوه چیغه د خطر پسی
په سترکو ئ تیاره شوه چه لیدل به ئ غازیان
غم راغی سراسر پسی

په سر د قتل کړ فرنګی جمعه کړه فوځونه
دی لام تری په پورته
له ورایه به را تلل پسی بنیروال لکه بازونه
حریان ئ شومه زورته
چاپیره د زلمو سری پیتئ چغر ډالونه
جلئ به شوی هرلورته
کولئ به د رفلو وریدی لکه باران
را تلل به برابر پسی

په سر د قتل کړ فرنګی ډیر وکه ارمان
شوه چیغه د خطر پسی
په سترکو ئ تیاره شوه چه لیدل به ئ غازیان
غم راغی سراسر پسی

# 11

## LA GUERRE DE BOUNÉR.

## د بنیر د جنګ چاربیته

١ له هنده دی راغلی په غزا پسی سفر که
له هنده دی راغلی خو وطن ئې بریلی
اوس ناست دی په ملکه کښې جوړوی دارو ګولی
په ډاګه ورته ناست دی تل ثنا د پاك اكبر كه
له هنده دی راغلی په غزا پسی سفر كه

٢ په ډاګه ورته ناست دی تل ثنا كه د غفور
انګریز په توپی جمع كه لښكر ورته كنړ ګور
لندن تر كلكتی تر كپنی وشه دا مذكور
دشمن دی پیدا شوی تن دی تینګ ورته لښكر كه

له هنده

3 كپنی چه شوه خبر حكم ئې وكه سمدستی
جرنیل ته ئې ویل چه پكښې و نكی سستی
كلی به ترینه پرېكم كه څوك پاتی شو ورستی
وددری مخامخ له مولوی سره تكر كه

له هنده

4 تكر له وله راغی سوات صاحب په ډیر شتاب
دیره په انبیله وُه پكښې نه وایم كذاب

5 د برکلی ناصر خان په فرنګی جوړ کـه تاتار
راکوز شـه ا نـبـلی تـه
څوک تښتی په خلورِ څوک ئ کړه په کښ مردار
ورتـیـرنـه شی ممـلی تـه
په بوټو نڼووځی خلاص بـه نـه شی دا غـول مار
مځ نـه نـسی ممـلی تـه
ورسم ئ کـړل شـاګـرده پـه دره بانـدی
سکان اسلام ئ که اختر پسی

په سر د قتل کړ

6 شیر میاشتی فرنګی په سورګاوی و کړل جنګونـه
دیر شو پـه کـښ خـرابِ
اوچت د کټ په سرورته صاحب ویل با نـګـونـه
دَ دوئ د سر قصاب تالان بـه ئ پـرِکـړ کـه
چه به ئ تیکره پری سانګو نـه
قواعد کـه پـه حـسـاب
نواب جانه په دوئ چتر د لمن د هغـه خـوان
هر څوک د شی خـبـر پـسی

په سر د قتل کـړ فـرنـګـی دیـر وکـه ارمان
شوه چیغه د خـطـر پـسی
په سترګو ئ تیاره شوه چه لیدل بـه ئ غـازیان
غم راغی سـراسـر پـسی

9 په روځ د پیغمبر ربه دا سوال مې کړي قبول
په دوارو خپوځ شل کړي چه کړي مونږ سره جدول
په تبرځ وبا راولي افت کړي پري نزول
د ډکر زید الله خان رب د ډکر پدی خطر که
له هنده

10 یاد یږي په ډکر کښ زید الله نوم ځ تهنګ
غازیان جمع و کړه په لالوی وکه جنګ
درځي په نیبه شپه خبرځ وکه په فرنګ
جیمس ته ځ ویل چه نن ډیر د خان خطر که
له هنده

11 جیمس ورته ویل زید الله دربه کړم انعام
د ستا ښنځه اني شولي په ما باندی مدام
وای نور شعل زید الله غرق دکه اسلام
دعا درته کوم رب کوري وارة تبر که
له هنده دی راغلي په غزا پسی سفر که

# 12

LA GUERRE DE BOUNÉR.

BALLADE DE TALIB GOUL.

## د بنیر د جنګ چاربیته

1 معامله جوړه شوه د کفر د اسلام
په کښ توځ شو د حضرت د باغ ګلونه

لنگری جاری کړی ښی نری ورق کباب
خوراك وُه د غازیانو دروغ نه وایمَ باور که
له هنده

5 باور څمونږ پدی چه ده صاحب په کرامت وُه
ددیری غمزن راغی دی رآوری ډیر قوت وُه
خبر چه فرنگی شه پری بیشانه خون هیبت وُه
فکرونه به ئی کول چه تن صبابه بر کسکر که
له هنده

6 کسکر ئی فرنگی که پسی راغی بنیروال
جلئ به ئی و ښکی توری کړی په منګل ډال
شاګرده غوږ پری کیږده درته وایم دا حال
جاهل به که قائل نن به خالی ترینه سنګر که
له هنده

7 جاهل به که قائل نن به تری ډك دله سنګر که
د مرو د زخمیانو آواز نه ختـه مطلق
په لوټ کښ ترینه یوړل ملایانو ډیر توپك
سکان د سرکاوی دی شامدام په دوی اختر که
له هنده

8 اختر به کا هغه چه څوك کوی دارنګه کار
چه را شی مخامخ دشمن له ولی په ګزار
خاوند به وله ورکه جنتونه په تیار
له خدایه به دوی خلاص شی شفاعت به پیغمبر که
له هنده

مولوي وي زه څه به تول کړم زميندار
د کنار صاحب به راولم په ننګ
کمشنر وي زه به ورکړمه انعام
که چا وکړه په غازيانو ګذارونه
معامله جوړه شوه

4 د بيګي اخوند صاحب راغلی له صواته
ټکاونړه ئې و نيوه په انبيله کښې
هغه د کوک پلټن ئې واړه کړه ميراته
په باطن به و لاړوه په معامله کښې
وې نن ورځ ده د جمع کوړئ صباته
ځا په ځائ به وی مرکو په رساله کښې
بنير والو داړه وکړه په ماښام
په کورو به ئې هردم کړه ګذارونه
معامله جوړه شوه

5 په فرنګ بانډې معامله شوله تر ډيره
بيرته تختي که چا ورکړه وله لار
توبه ګير شه صوات له سمې له بنيره
ډير عالم شه په کندو کښې تر مردار
دا حمله ئې کړه د دوئ له مرګه تيره
چه راتله به پښتانه پري وار به وار
چه د صوات عالمو وکړ ورته نام
باجوړ و له فرنګي وکړه قتلونه
معامله جوړه شوه

د انگریز لښکری راغلی له لاهوره
څنی توپی غنباری څنی هاتیان وو
څوک خبر نه وو له دی کافر له زوره
څنی خره څنی تتوان څنی سیکان وو
دبدبه ئی وه خوره تر هره لوره
ورسره د پښتنو ښکلی سپاهیان وو
له دیلنه ئی راپورته کړ خیل تام
په مکلا باندی ئی جمع کړه فوځونه
معامله جوړ شوه د کفر د اسلام
په کښ توی شو د حضرت د باغ گلونه

2 په مکلا باندی دیره شو مجاهدین
په غزا پسی راغلی وو له لری
فرنگی ورته نیولی وه دوربین
ورته ئی وی چه شئ څما له مخه لری
مولوی و ستا به نه کیږی یقین
مونږ ته مه کوه نری نری خبری
یا به واړه شو په تا باندی تمام
یا به هیر کړو له مینی نه حکمتونه
معامله جوړه شوه

3 فرنگی هندوستانو ته وکړ قهر
تاسی څوک ئی چه کوی راسره جنګ
د فوځونو څما هیڅ نشته دی شمار
دا مکلا به کړم په تاسو باندی تنګ

# 13

LA GUERRE DE BUNÉR.

GHAZAL DE PÂYÂB.

## غزل د پایاب شاعر

1 په دی جمله شوه معامله کاغذ فرنگی له راغی
د دی صاحب په مخ کښې پښتون ئې جنګ له راغی
جنګ له راغی عالم صاحب جاری قلم
په فرنګیانو شه غمر صاحب ئې جنګ له راغی
په دی جمله شوه معامله کاغذ فرنګی له راغی
دَ دی صاحب په مخ کښې پښتون ئې جنګ له راغی

2 جنګ له راغله غازیان د سیلمی ټول مومنان
په انبیله شو شهیدان سر ئې پالنګ له راغی
په دی جمله

3 سر ابېردی بنیروال اخون صاحب په اقبال
مجاهدین ټول په سنبال ورسره ننګ له راغی
په دی جمله

4 په سنبال ځی برابر فرنګی جوړ کړه سنګر
اخون صاحب لګه نور صبا یو درنګ له راغی
په دی جمله

6 باجوړ و وی دَه را پیښه له تقدیره
فرنگی له کلکتی شه را روان
که خدائ کاندی خلاص به نشی دابی پیره
که له دیره پسی راشی غزن خان
څوک خبر نه وَه له دی کافر خنزیره
به روپو تاند ئی پریښود خپل ایمان
دَ صاحب په مخ کښی وئ نه که سلام
رب دِ وران کاندی دَ دِ کافر ملکونه

معامله جوړه شوه

7 فرنگی راغی دیره شه په دربند کښی
د عیسی زی جرگی نه ئی کیخوده قرآن
وی دا مال دولت به یوسمه په بند کښی
دا ملکونه به کرم تاسو باندی روان
پښتو وی راتله نشته دی په ژوند کښی
صد رحمت شه پری پوهیری قبول خان
زه طالب گل یم د کاکا صاحب غلام
ما دَ شعر پکار کښی و پیل هارونه
معامله جوړه شوه د کفر د اسلام
په کښی توئ شو د حضرت د باغ گلونه

د انبیلی په کنډوکی کښی
کوره پراته دی زیره پیتی بمر سرونه

## 15

### DESCRIPTION DU PAYS DE SVÂT.

MESNEVI D'ʿANVÂN EDDIN.

### حال د ملك د صوات ابیات د عنوان الدین کا کاخیل
### واقعه ۱۸ ماه مارچ سنه ۱۸۸۲ عیسوی

راشه وآوره دا بیان — چه تول صوات شی درعیان
سراسر پری کرزیدلی — ما په خپل دی لیدلی
د یوسف دی دا اولاد — اکوزی باندی شی یاد
یوه دره ده سراسر — سیند په مینځ کښی برابر
په شمال تر خوازوزی دی — په جنوب تر بایزی دی
بایزی دیری تپی دی — سراسر سره پرتی دی
رانړیزی دی په مغرب — الهٔ ډنډ کښی دی غالب
دغه شای د خانی کور دی — د کاچو د اولاد زور دی
په تانړه کښی دی خان خیل — دحمزا اولاد بیل بیل
بیا کوته کښی موسی خیل — پری کوټ کښی ابا خیل
بیا اکا معروف یادیری — منکه وره کښی ستائیری
پوری غاړی نیکی خیل — نیک ولی پوری بیل بیل
شموزی بیا ادین زی — چکدرو پوری ورزی
دا په کوز صوات شو مشهور — برابر کوم مذکور

5 په هغه درنګ ښی ګوره د اکوز و له زوره
د دی انګریز له اوږغزن کاتلنګ له راغی
په دی جمله

6 غزن پتهوړی په غلا په دوئ دِ پرېوزی بلا
دَدِ دګروزېد الله سرګوزی ګند له راغی
په دی جمله

7 پاپاب ئِ جوړ که صفت مولا دِ ورکړی جنت
په هغه ورځ د قیامت د حورو ښنک له راغی
په دی جمله شوه معامله کاغذ فرنګی له راغی
د دی صاحب په مخ کښِ پښتون ئِ جنګ له راغی

# 14

## LA GUERRE DE BOUNÉR.

### MISRAS.

1 د سنګر خوا ته شئ غازیانو
د فرنګی ګولئ وربېری په شکېرونو
2 د خدای رحمت په باباځ شه
چه فرنګی ئِ په کلکته ولګونه
3 باباجی بل زوی دِ و شه
چه تر کلکتې پوری خپل کړی وطنونه
4 فرنګه تښته که حلاصېری
صاحب سوربېری اکوزی وریسی خینه

زمستان دَ پیښور — تابستان دَ ایلم غر
هم په صوات کښِ سراسر — آبادی شته سم په غر
آبادی عمارتونَ — دَ سکندر د وقت ضربونَ
دَ هنودو دَ کافرو — یا بادشاه چه سکندر وَه
غرض داچه بادشاهت — نښانی دَ حکومت
چونه کچ عمارتونَ — هم پخته پخته خاپونَ
شته په صوات کښِ قدیمی — چه بُتان تری خلق موی
چه په صوات کښِ وَه فقیر — ما لیدلی په شیر شیر
دیر هوښیار وَه هم عابد — دنیادار وَه هم زاهد
دَی فقیر نه وَه غنی وَه — په حکمت کښِ لاثانی وَه
نوم ئ دَی عبد الغفور — خدائ دِ دَی کاندی مغفور
دوه زامن شو تری نه پاتی — یو عابِد بل کوِی زباتی
دا عابد عبد الخالق دی — چه د دین په کار فایق دَی
د غه بل عبد الحنان دی — د فتنی په کار روان دی
دا تحریر دَ عنوان الدّین — رښتیا کړ په خپل یقین

# 16

## LA GUERRE DE CABOUL.

### PAR LE POÈTE DE JELÂLÂBÂD.

## جنګ د کابل تصنیف د جلال آباد د شاعر

قادره ذو الجلالَ — بی شرکَ بی مثالَ
ایمان پر خطا مکړِی — فرنګ ورک کړِی
نه کابلَ — زاری پر نښته بلَ

بیا راپوری دَی چار باغ … هم په خنګ کښِ ګلی باغ
متوریزو با ندی یا دیږی … که باور د په ما کیږی
بیا د پاسه عزی خیل دی … بیا په پورته جنګی خیل دِی
تر خونه جانو لنګره … دا تیپه شوه برابره
بیا په پوری غاړه زوره … شامیزی پراته دی ګوره
تری نه کوزه بیا خوګلی … دسی بوجنی دی شاغلی
چه دوئ دیر دی زوره ور … د جنګریز په کار اکثر
نیکولی پوری دَی غونډه … هارنوئ په غاړه پنډه
چه یادیږی په بر هوات … په کښِ نشته کمر و زیات
ده دَ صوات دره دیرش کروهَ … سراسر که ئې پری پوهَ
پهنائی دری خلور … کروه دَه په ښه سرور
سراسر ملک دَی اَبی … بعضی بعضی بارانی
و ریژی شولی هر قسمه … صوات کښِ واخسته زمه
هم جوار او هم غنم … ماش او مونګ ورسره سم
په کښِ نشته دی اوربشی … له اوربشو څبی تشی
دَ صوات زمکه دَه زرخیزه … خو مخلوق ئې دَی درویزه
دوئ مدام کوی ویشونه … یو د بل سره جنګونه
څکه ښه نه آبادیږی … چه سیلونه په کښِ کیږی
که محکوم وی دَ انګریز … په جهان به وَه زرخیز
هم دَ صوات وطن دَی یخ … ښشه وُمر په کښِ خوښ
اوُبه صافی هم سړی دِی … چه جارِی وِی هم رنړی وِی
په کښِ ونی د چنار … په ولو باندی قطار
هم په غرونو کښِ نختر … لوئ لوئ شته دَی برابر
د موری دَ ایلم غرونه … دِیُ ساړه کوه سیلونه
چه په اوری په کښِ اور … ضرورت وِی کور په کور

بنځو پیسو د پاره له اسلام نه لاس په سر شو
تور مخی د محشار شو

8 چه څوك مسلمانان ئ مسلم په ښه اِمان ئ
غزا پسی روان ئ
له سرو مالَ تیر ئ د حضرت د دیمن د پاره
ترس نکړی له کفّاره

9 محمد یعقوب ئ زوی وو مکی نمه وو دی لوی وو
دانا په عقل پوه وو
روان ئ مکناری کړ ور ئ کړ بالا حصار
یو سو ورځی قرار

10 ناګاه غلبله وه اردله رساله وه
په مخ کښ ئ ګله وه
تمام ئ را حصار کړل په کابل ئ کړ مردار
خبر نوه سردار

11 سردار شو په غضب دا کار دی ډیر عجب
لښکر ئ کړ طلب
لښکر وِ تمای مرکونه و کړه بدا شان
غازی محمد جان خان

12 محمد جان خان ورته ویل بدا یمه قایل
وَ هلی مِ جاهل د خیله لاسَ ما د مکنارِی مری کړه غُصَّ
چاره مِ کړیرِ پسَّه

۲ فرنگ راغی له هنده که راشی ولکه تنده
په هیڅ ئې پروا مکړی وطن تول کانړی پائمال
و هی سرومال

3 خیبر کښ افریدی وو دوی وارہ تور تهندی وو
کاروان ته کرندی وو
فرنگ ته ئې ملا ماته وه بچپله ئې کړرا تیر
اسلام ئې سپک کړ دیر

4 فرنگ وی چه سحر شو ماکاه دزه هار شو
امیر صاحب بچپله له غیرت خما جانه
فنا شو له جهانه

5 مهمند تله خزلی غلجی وکری منزلی
ما کری دی بدلی
نه سر نه ئې سامان شته نه په شمار کښ حسابیږی
الله پدوی پوهیږی

6 که تول به اتفاق وی په یو ځای کښ اُتراق وی
دیره په بشبلاق وی
فرنگو به لال پوره لاندی کری نوه وروره
خبر به وو له زوره

7 چا کفر کړ قبول دولت ئې کړ وصول
دشمن شو د رسول

18 چه خوك دی داسه نر چه جنك وكړی حاضر
مردار كا دا مضر
غازی محمد جان خان ته
بَری ته ور كړه ئی الحاله قادره ذو الجلالَ
زاری پر نشته بله

19 نن بیاله دیره غمه خلاص نشم له ماتمه
د هجر له تور تمه
غنچه وه د ګلاب خزان جدا كړه له غند له
زاری

# 17

LA GUERRE DE CABOUL.

BALLADE DE PÂYÂB.

## د كابل د جنك چاربیته

1 فرنك لاړشه په قهر
اختیار كوی د جنك
فوزونه ئی كړه جمع
په كابل كښ شه حصار خاوند كه تار پتار

2 انګریز شه تول روان د خان كوی سامان
پزره كښ دی پشمان
خواس واخستی بدی د انګریزو كوی ننګ
اختیار كوی د جنك

13 چه وئ سوبه اور ښکاره کړ خپل زور
کښنی ته لاړو شور
کښی شوه په غضب نوروئ ویل لاټ راپټ
سرگند زه مه په پټ

14 راپټ راغی په کرمه بیا دَ کابل په خرمه
امان له د اسی کړمه
راپټ لکه چنجی د یعقوب خان وخوت پدِل
ترِ پاتو شو کابل

15 محمد یعقوب سلام ته لاړ د راپټ مقام ته
چه شائ کړه اسلام ته
راپټ بیگناه ونیو هندوستان ته ئ کړه روان
بیا دی بندیوان

16 کابل کښ سرداران ولاړ وو په سوران
بل پاتی شو یاران
بادشاه ئ خموژ بوتلو چه محمد یعقوب ئ نوم وو
کښی چه معلوم وو

17 غزا ته ئ کیښو غاړه حیران شو تمام واړه
هیچه ونکړه آړه
په سر محمد جان خان وو صاحب زاده مشکی عالم وو
کښی باندِ ماتم وو

8 فرنګ ورانډی شه تری تیر    له لنډیکوټ شه چاپیر
لنډیکوټ ئې د یره کړه تړینه اخلی اوس قلنګ
اختیار کوی د جنګ

9 شنواری شو زهیر    دوی له رنګه دی نخچیر
پری نظر دی د لوی پیر
ملګری د اسلام دی د ایمان کوی دوی طمعه
فوزونه ئې کړه جمعه

10 د شنواور دی لوی قوت    رب ور کړی برکت
پری منګل د حضرت
وی را خی کوو غزا خمونږه نشته دی بل لار
خاوند که تار پتار

11 فرنګ لاړ تر باسوله    دا خبره ئې کوله
په ډکې ئې خوخوله
ډکه ئې کړله خپله درته وایم په یو درنګ
اختیار کوی د جنګ

12 له ډکې له شه دا ورانډی    کندمك ئې که د لانډی
د ټکی خبری کانډی
لاټ وکړلې روپئې چه افریدی کړه بر دمه
فوزونه ئې کړه جمع

13 لاټ روپئې کړلې خوری    خلقو کړی ننداری
د غازیانو سترګی سری

3 خواس شه بدبخور نشرمیږی په پیغور
خپل خدای ته ئې مختور
مکنړي ته ئې ویل چه زه به ستا وکړم ننګ
اختیار کوی د جنګ

4 افریدو واخستی بدی کرزیده به دوی په ډډی
د غازیانو لاړی کډی
د یوس پکښی خواس دی چه خپل خان ئې که بدرنګ
اختیار کوی د جنګ

5 خواس دی پکښ تنګ پالی د کفرګ
د غازیانو لوی دی غر
شاباش شه په غازیانو فوزونه ئې کړه جمعه
خپله توره ئې کړه محکمه

6 مکنړی ته ئې وکه لوظ ترینه وا ئې خست دیر فوز
خنی پاتی په جمروز
دی لاړ علی مسجد له هلته کیناست بیغمه
فوزونه ئې کړه جمعه

7 علی مسجد کښ وه لوی شور د غازیانو نه وه زور
فرنګی بد دی له اور
فرنګی وچلوه بار علی مسجد ئې که وزګار
خاوند که تار پتار

مړی ملنګری که چه کابل ئی که وزګار
خاوند کړل تار پتار

19 د ملنګری راغی ریوټ فرنګیانو وکه کوټ
په انګریزو شه پلپوټ
لاټ و که مصلحت چه خپل فوز به کړم چوړنګ
اختیار کوی د جنګ

20 حواس شه په لعنت دا زوئ دی د غلط
چا ته نکوری اوچت
دشمن خمونږ د دین دی د هر چا دی ورته قار
خاوند که تار پتار

21 یعقوب خان ونیوه خما وروره زر کوز که له لا هوره
د خاوند کارونه ګوره
شاباش په محمد جان شه چه خپله توره ئی کړه محکمه
فوزونه ئی کړه جمع

22 محمد جان و کړله توره په هر خای کښ ده مشهوره
که خاوند کړی منظوره
را وئ ښکه فرنګی ئی له خیبره که باهر
خاوند که تار پتار

23 فرنګیان راغلی په ماتی کولی به دوی زیاتی
کابل شه له دوی پاتی

ماړی افریدی کړل چه خوری غوښی د مردار
خاوند که تارپتار

14 په فرنگیانو وه ضرور لاړ وه بزره رنځور
یعقوب خان ئ شه تربور ۱
یعقوب خان ئ سلامی چه له خدای نه وه دا سمه
فوزونه ئ کړه جمع

15 غازیانو وکړله صلا که خوک پیر دی که ملا
یادوی تاسو الله
وی ایښی مونږ سرونه په نامه د پاك ستار
خاوند که تارپتار

16 فرنگ لاړ شه کابل پزره کښ وه دا غل
یعقوب خان ئ وکه چل
یعقوب خان ته ئ ویل مکنری زه اوس ته په خنگ
اختیار کوی د جنگ

17 مکنری راغی په بیرته حال ئ ووی مکشنر ته
قضا راغله خمونږ سر ته
کابل ږ که اوس خپل چه ترینه زه کوم طمع
فوزونه ئ کړه جمع

18 کابل له لاړ شه دا دوبار خلقه وکړی بری اعتبار
زه کوم دغه گفتار

په خیبر کښې میر اخور ورته ترخې وکړې خبرې
را جمع شوی لښکرې

2 میر اخور ورته محکم شه په کمرې باندې دیر غمژن شه
خبر پر ټول عالم شه
حریان په هغه خای ای خلق ودریږه په ځنګ
هیڅ وې نه کړ جنګ
په بیرته را روان شه داخل په خیل مکان شه
دا کار په ده دیر ګران شه
په چل تر پوره نه شوه اوس خبره شوه د زور
روانې شوی بالفور

3 خبر شه واتر فیل قسم وکه سقیل
په تورات او په انجیل
کابل به هاله پر بردو چه انګریز شې ټول تمام
جوړې که ګدام
لښکرې بې حسابه طلب که له پنجاب
وسلې له هر باب
پلټنو ته ئې ورکړې زرتر زر ګمناري ئې دې افسر

4 لښکر ئې که طیار له عقل نه بهار
په امر د سرکار
رخصت ئې که په کرم قطع ئې کړې لوری زوری
را جمع شوی لښکرې

5 کابل ته چه ښکاره شو خلق ئې ټول په ننداره شو

شاباش په محمد جان شه چه مدام به وُه خوشرنګ
اختیار کوی د جنګ

24 محمد جان خان وکه مطلب راضی وُه پدی رب
په هر ځای کښ ئ دبدب
خپه پری فرنګیان شو سترګی ډکی وی له غمه
فوزونه ئ کړه جمع

25 فرنګیان راغلی زهیر هر یو وُه پزړه غګیر
ورسره فوز د کشمیر
پایاب جوړ که بیان داسی بل و وائ څوک شعار
خاوند که تار پتار

18

LA GUERRE DE CABOUL.

BALLADE D'ABDOULLAH.

## دَ کابل د جنګ چاربیته

را جمع شوی لښکری 1
په نیت باندِ د جنګ
روانی شوی بالغور
جوړ ئ ک کدام ترلی لام ځی برابر
مکنری ئ دی افسر
را جمع شو فوځونه سواره پلی ای اخونه
کابل ته روان شونه

9 يـــو پاتې ګمـــنـــري شــــه   اجـل واخـسـت تـــيـــري شــه
په هـغـه ځـــائ ډيـــرَى شـــه
کـه مړشه پــه کابـــل کــښِ چـيـتـمـئ ئې لاړه تــر لاهـــور
رواني شـــوي بالـــفـــور

10 چـيتمئ ئې لاړله بـه شــکـــتـــه   ګـمـيـنئ له بې مــهـلـــتَ
دَ جــنـګ له حـــقـــيـــقـــتَ
لـــيـــکـــلي پـــه کــښِ ډيـــره مــدعا وَه لـــګ کـــلام
جـــوړئ کــــه ګـــمدام
د کابل خـــلـــق و فـــســات   پـــه مـــونـــږ وکـــــه زيات
ګمـــنـــري ئې کـــه مــــيـــرات
يـو دي ورســـره نـــور جـــامـــونـــه ئې نـــوش کـــړه د ســـفـــر
ګمـــنـــري ئې دَى افـــســـر

11 ګمـــيـــنئ پـــه دي خـــبـــره   له غـــمَ شـــوه اوتـــره
غـــورږ ونـــســـه دلـــبـــره
جـــاري ئې پـــرواني کـــړلې پـــه چـــاونـــړو بانـــډِ زړه وړِ
را جمع شـوي لـــښـــکـــري

12 لـــوي دِي کـــــه وارۀ دِي   جـــوانان دِي کــــــه زاړه دِي
چه هرڅوک طلب خـــوارۀ دِي
خپل ځان دِ کـــړِي سُـــنـــبـــال وســـلي دِ واخِـــلي پـــه دا درنـــګ
پَـــه نـــيـــت بانـــدِ دَ جـــنـــګ

13 ســـوارۀ دِي او کـــــه پـــلِي   روان دِ شـــئـــي تـــو غـــلي
کابـــل تـــه دِ وُزغـــلي

هر څوک په تراره شو      و راځي چه کلی واخلو
نن به زور کښې دَی فرنګ      په نیت باندِ دَ جنګ
نن به زور کښې دَی انګریز      هر چا ته کوری تیز
اوس مونږ له دی په کار ترِ دیر پرهیز
اوس څي چه ځان په څنګ کړو بیا به راشو په هر لور
روانی شوی بالغور

6 اوس څي چه ځان سُنبال کړو      دَ جنګ به هاله خیال کړو
انګریز به تول پایمال کړو
او بی له مصلحتَ چاری نه شی وکړیَ فهم
جوړئ که کدام
مصلحت ئ وکه یاره      را تول شو په تلواره
کابل تر قندهاره
انګریز صلحَ بناکړه په امان کښې د خپل سر
کمنری ئ دَی افسر

7 انګریز صلحَ بناکړه      د صلحی تمناکړه
تا لا ئ خزانه کړه
ورکړی سردار محمد یعقوب له مرغلری
را جمعَ شوی لښکری

8 په بیرته شه راستون      له کابلَ شه بیرون
راته به په مضمون
خیبر نه شه رِا بښکته سر ببر په زره چورنګ
په نیت باندِ دَ جنګ

18 راپټ چه په دی پوه شه    چه لښکر دَ امیر لوی شه
هر ځای کښ هاهوی شه
محمد جان خان ته ئې وُوِته بِہ مولا زه دِ غلام
که جوړ ئې کدام
محمد جان خان هرِکوټ پوری کړی    ځړی ئې ترِسر تنوری کړی
خدای دِ بری ورکړی •
چه دُښمن که زبر زبر    ځمنری ئې دی افسر

19 جنګونه وکړه ډیر    کابل کښِ تیر وبیر
دَ توفو د شمشیر
که څوک په کښ ماړه شو چانه پاتی شه تبری
را جمع شوی لښکری

20 کابل ئې چه وزګار که    غزنی ته ئې رفتار که
دلوی جنګ ئې اختیار که
ګوره وو که کاله وو    تول ئې کړه په وینو رنګ
په نیت باندِ د جنګ

21 غزنین نه بیا بهر شه    په نیت دَ قندهار شه
ښکاره لګه دَ نمر شه
یو ځو ورځی دیره وُه بیا ئې دَ جنګ وغږوه دور
روان شوی بالغور

22 ایوب خان محمد جان دواړه    دیره وو په اوجاړه
په جنګ کښ وو هم غاړه

په ځائ دَ ګمنري دِ ممدستي پوري کړه اور
رواني شوي بالسفور

14 رابت ئ که جرنيل کابل ته شه په ميل
په زره بانډِ غلبيل د
دَ ورځې به ئ منزل کړ او ډيره به شه مابشام
که جوړ ئ که کدام
منزل په منزل ته نه خيل خان به ئ ساته نه
کابل ته شه د ننه
ډيره شه په ميدان کښې ورسره وُه لوي لښکر
ګمنري ئ دَي افسر

15 کابل کښې چه داخل شه مقصود دده حاصل شه
له سردار سره واصل شه
راغي سلامي محمد يعقوب وله له لري را جمعَ شوي لښکري

16 يعقوب ئ بنديوان کړه په ښکته ئ روان کړه
وطن ئ هندوستان کړه
خبر تري نه څوک نه دي چه شراب خوري اوکه بهنګ
په نيت بانډِ دَ جنګ

17 غازي محمد جان خان را تول ئ کړل غازيان
راته په سپين ميدان
رابت ئ دربه درکه وار خطا که شه په شور
رواني شوي بالسفور

3 ملا خلیل سره کاشکوټ او کورکی راغلی
سُرج مَزار څه امله وال کلا تکی راغلی
څه بوډیال وال څه دری نوری څه چُکنی راغلی
چه دَ توپ ډز شه دا سرکوزی په دامان لاړه

4 ملا خلیل ویل څمونک ورتلو څننډ وکړ
چه پیرنګی د ښکیه راته هرچا ئ څننګ وکړ
رحمت په ما شه دَ حضرت په دین مِ ننګ وکړ
جنك مِ بنا کړه مخ په بیرته پیر نکیان لاړه

5 ناخاپه غړشه چار مسیٔ له رساله راغله
کریم خان وُویل دَ سرو نو حواله راغله
خوانانو تښتی چه څمونږ په کله راغله
دی کریم خان سره دریاب له هلکان لاړه

6 د پیرنګی مچو لښکر دِ سپین صبا شینه
خاونده خدایه لا په مرګ باندِ تباه شینه
چه د توپ ډز شی دا ورشاړی دوتقا شینه
واړه کونیان وُو چه مُخبِرته په میدان لاړه

7 په بر نیکار مِ توری لړی سره پوزونَ راغله
حساب نیشته بی حساب عالمونَ راغله
قلای مَلَق باندِ د غازیانو بیرغونَ راغله
جنګ ئ و نه کړ دَ سپی خاس کفار لاړه


IMPRIMERIE NATIONALE.

ټول ملك په وينو سور شه پاتې نه شه ځائ د ګام
جوړ ئې كه ګدام
چه ډوى دواړه وكړه فتحَ ما ئې زر وكړه مدحَ
شاعرَ مه كړه قدحَ
نامه ېږ عبد الله دَى دَ منان خان يېمَ نوكر
ګنړى ئې دى افسر •

## 19 •

### LA GUERRE DE CABOUL. — BATAILLE DE CHÂR MÊSÂ.

### BALLADE D'ALI JÂN.

### دَ چار ميسى چاربيته

۱ له چار ميسى نه څه ښايسته ښايسته ګلان لاړه
ټوټى ټوټى په ږنړو ټورو شهيدان لاړه
ملا خليل وګوره خومره قوّت ورسره
چه خبريده به عالم ته برابر ورسره
دالاس نيوى ونه كو دى ميان حيدر ورسره
پلى سواره ورسره د خالو خان لاړه

۲ ملا خليل وګوره خومره خوارى ئې وكړه
ګلى په ګلى ګرزيد ومنت زارئ وكړه
لښكر ئې ټول كه دَ لښكر جمع وارى وكړه
جنګ ئې ونه كړزوه ترڅ په ارمان لاړه

د لسو ورځو لار دا میراخور په یو منزل کیږی
جان جان ښکه جنګونه په کابل کیږی

٢ د لسو ورځو لار دا میراخور ئ په آس سورکه نه
او دا هُنرئ جوړکه نه
د منډی کړندی وُه ښان داخل ئ په خپل کُورکه نه
او جوړئ شروشورکه نه
و دربده امیر صاحب ته تاوېږ له خپکره ښی
جوړ ئ که کدام تړلی لام ګناری بره ښی
پرینبی ئ لښکر دی چه په شپه ورځ غویمنډ کیږی
جان جان ښکه جنګونه په کابل کیږی

3 پرینبی ئ لښکر دی انګریز دا رنګ مصلحت وکه
او زړئ صلحیت وُکه
واپس ئ کړی پلټنی د امیرئ لوی عزت وکه
او وروستو چا علت وکه
پرئ ګناری که اوس خالی لاس له دفتره ښی
جوړ ئ که کدام تړلی لام ګناری بره ښی
ولی تبښی کابلیان د خدائ په فضل ودربدل کیږی
جان جان ښکه جنګونه په کابل کیږی

4 رحمت شه په غازیانو غازی هر یو سر بلند دِ ینه
او نوم خو ئ ښرکند دینه
محمد غازی یعقوب چه ئ روان که روغ ئ خوند کنه
او بشکته ئ نظر بند وُنه

8 قلای ملق په شهیدانو دِ رحمت وینه
توره ئ کړی بلبلان به د جنت وینه
ملك شئ په زوی دِ زر خَلَ لعنت وینه
بدی ئ واخستی خوشحاله پیر نکیان لاړه

٩

9 دَ اغا جان خوبندی چه جاړی خپل جانان غواړی
دَ خدایَ سوال که هغه خپل کلِ رویان غواړی
تورئ پتکی تور ئ وروځی خپل نشان غواړی
دا دیر غونَ علی جان په زړه انبار لاړه

# 20

LA GUERRE DE CABOUL.

BALLADE DE MAQSOUD GOUL.

## چاربیته د جنګ د کابل

١ جوړ ئ که کدام ترلی لام کمناری بره ځی
جان جان ځنګه جنګونه په کابل کیږی
جوړ ئ که کدام ترلی لام چه پسی سم شنه
او پیښ ورته لوی غم شنه
لاړعلی مسجد ته میراخور ورته محکم شنه
واړه کاړئ خم شنه
څلور ګذاره ئ وکړه اوس په ماته د خیبره ځی
جوړئ که کدام ترلی لام کمناری بره ځی

2 چه یعقوب خان له بند خلاص شه کینا شه په تخت
موټر میمنی ته څو فرزنده دا مهم دی سخت
کجاوی بار کړی ناپرسنده څم په دا ساعت
شیر علی بوه وه په اول کښ خود غلی روان شه

3 شیر علی دیر په واویلو کښ لاړ و میمني ته
مالُ دولت ئې ټول تالا شه ګورَ ئې خیلخانی ته
له غمَ مړ شه سر بالا وه غوړ کیږده ئې معنی ته
دَ دَه لیکلی په ازل کښ خوڈ علی روان شه

4 په نصیبَ ښکلی نه نوریږی واوره څما جانَ
یعقوب چه ورځی نسکیر دا واوره له مانَ
پیرنګو تینک ونیو دستګیر هلته شه پښیمانَ
د کمناری په تخت بدل کښ اوس ښکته بندیوان شه

5 د کمناری ظالم بدل کښ خان محمد یعقوب
کابل مِړ ولیده لتاړ وبجاړ ښه په سترګو خوب
په خوا دیلي ښکته لتاړ وه بوه شه په مطلوب
په هر غزل ستا بی ارزی ده پیښ درته نقصان شه

6 بی عرضَ ورځ د سردارانو دیر دی په کښ تنګ
تیښته عادت ده د خوارانو نه کوی نور جنګ
په لار ځی دَ مشرانو واړه دی بی ننګ
محمد جان خان غازی غوبل کښ ودریده نشان

هر څوك توره نه كه يكتنها به له تـبـره څـى
جوړ ئ كه ګدام ترلي لامر كمناري بـره څـى
رحمت شه په غازيانو د سرونو پريكدل كيږى
جان جان خنګه جـنګونـه په كابـل كيږى

5 رحمت شه په غازيانو خداځ په هر ځا مهربان شـنـه
او خــوارئ دښــمــنــان شـونـه
كوره ګميدان ابراهيم خان ته بنى شغلى ئ له بشره څى
جوړ ئ كه ګدام ترلي لامر كمـنـارى بره څـى
سل روپئ ديلى د مقصود ګـل د كال پـه من كـيږى
جان جان خـنـګه جنګونه په كابـل كـيـږى

# 21

## LA GUERRE DE CABOUL.

### BALLADE DE MAQSOUD.

## د كابل چاربيته

1 فرنګى كينا شه كابل كښ دير عالمر طـوفان شـه
سردارى و نيوه په چل كښ كور د امير وران شه
فرنګى دير ور كـه دولـت ورغى پـه كـور
امير ته نـه شـه ملامت نـه ئ وه نـور زور
تينه ئ خراب كه سلطنت هلته كـروكـور شـه
يعقوب ئ تينګ ونيو بغل كښ ورو ورته كوبان شـه

# 23

MORT DE MOHAMMED JÂN.

BALLADE DE GHARÎBÎ.

## د محمدجان خان د قتل چاربیته

١ محمدجان خان غازی شهید له دنیا تیر شه نه
مړکه امیر په ټکئ ګیر شه نه
محمدجان خان چه دَ امیر سره نوکر شه نه
واړه عالم په دا خبر شه نه
توپ چه باشی او توربالی دَ جنګ افسر شه نه
پروت په ډکه ټینګ په خیبر شه نه
جنګ ئې بناکړ کمناری پر زورور شه نه
بر په توره کم ئې لښکر شه نه
اسلام ترِ لاړ چپاو دَ کفر ترِ چاپیر شه
مړکه امیر په ټکئ ګیر شه نه

٢ پیرندی لاړ په جګدلی ورته ډیره شه نه
حال د وطن ورته ښکاره شه نه
د ټکئ داک ئې چلاوه آخر ښکاره شه نه
دد وه کابل زړه ئې کڅره شه نه
چه څوک مؤمن وه هغه ټول په تراره شه نه
لاړو اسلام زړه زړه شه نه

7 محمدجان خان غازی عجب وه تینک شه ددوی زورته
کفارو بیاموندہ ادب بیا به نه خی پورته
مقصوده جاړه روزوشب څه دمکی لورته
په عبشاتو دِ خان غل که عمر دِ تاوان شه

## 22

MOHAMMED JÂN.

GHAZAL DE MOHAMMEDIN.

### غزل د محمدجان غازی چه په کابل کښِ له انګریزو سره جنګ ئ کړی وُه

1 تل کړی جنګ نه کړی څنګ څه عجب دی څوان
خوری غورزنګ په فرنګ نوم ئ محمدجان
2 که راغی له لدنه د کابل په نیت
لوی توفنګ درنګ په درنګ ولی هر زمان
3 که جنګ د مومنانو د نبی په دین
وکړئ ننګ کړی ئ بدرنګ واړه کافران
4 که څائ د کافرانو په سقر کښِ دَی
لوی کړنګ قبر تنګ سوځی په نیران
5 که دغه مرتبه د شهیدانو دَه
د کل په رنګ په پالنګ ناست دی جنان
6 که څی به محمدین ته له دی دنیا نه
ووهه لنګ شه ملنګ په در کښِ د سبحان

یعقوب خان وکړو تخت پیغور ورته په تار بانډ
شلك ئې وکړ کمنړی ګفار بانډ
چاندی غازی د توری اوری په کښ سیر شه
مړکه امیر په تنګئ ګیر شه

6 محمدجان خان چه توره وکړه په اول بانډ
عرض ئې وکړ په پردی خیل بانډ
عبد الرحمان سردار چه کښیناست په کابل بانډ
ورك شه باور اوس یو په بل بانډ
هردم چپا وکه میر بچه اوباچا ګل بانډ
وجنی غازیان ډیر په زلزل بانډ
زه غریبی په زړه زخمی جاری ږ شیر شه
غریبی ساکن بتی کوټ علاقه ننګرهار

# 24

## MORT DU SOUBEHDÂR AZÎZKHÂN.

BALLADE DE MAHMOUD.

## د عزیز خان صوبدار بهادر

1 غم په ما دراز شه غوغ ږ شه ضمیر
چاو عزیز خان سردار
روان د حق په لور شه مړم فراق ږ زور شه
زیات شه زور خما ملنګ چه شه جوړ مقام د جنګ

لاڨ وهلی کمناری لاس په شمشیر شه
مرکه امیر په تکئ گیر شه نه

•

3 چه کمناری کړ مردار دوی بی زهیر شونه
هلته کښی دوی د خان په ویر شونه
لاڼ جنگی او واربتی ته دامنگیر شونه
بیر ته زخمی دَ ملا په تیر شونه
جنگی مُلکی لاڼ حکمی په دا تغریر شونه
وئ کړه جلسه بشوښ په امیر شونه
محمد یعقوب ئ کړیندی وطن هیر شه
مرکه امیر په تکئ گیر شه

4 خان ئ را خلاص کړو په مردی نوم بلند شه نه
په هر طرن خکه خرکند شه نه
دَ جنگ ملکری دورانی غلجی مهمند شه نه
گفت وه د پیر کارئ پیوند شه نه
دده له لاسَ د کافرو خراب چوند شه نه
نیت ئ غزا سور په سَمند شه نه
ددین په کارکښ کړ زیده شورښت ئ دیر شه

5 لښکر راغلی دَ اردل وه په تلا بانډ
عرض ئ وکړ یعقوب سردار بانډ
خمونږ ماجب دِ پاتی شوی ستاپه پلار بانډ
غوارو ئ مونگ زر په تلوار بانډ

5 نه شور نه زوږ سوران وُه وارۀ فوځ وارۀ په امان وُه
افضل په ویر د ښان وُه
ماما تری سیخمان پاتی حریان خور ئ وه محتاج
غم په ما دراز شه

6 خور ئ په هغه درنګ د ماما ونیوه ځنګ
ښان ئ کړ په وینو رنګ
لاس ئ کړل تری نه چاپیرۀ افضل وُه ډیر په زړه دلګیر
غوځ پر شه ضمیر

7 دلګیری چه دَ سردار میجر ولیده په جار
د ډولئ شه طلبګار
وښکوه زر چټمئ افسر جرنیل خبر په دی انګور شه
مرم فراق پر زور شه

8 جرنیل وی و ښکل میجر زخمی دی سردار بهادر
یو قلی کړی راحاضر
اردلی ته په دا شان سره ګویان غریب نواز شه
غم په ما دراز شه
اردلی هغه محال روان قلیان کړه دوه سنبال
هلته ورغله فی الحال
لوی اقبال دی د انګریزو هر یو کار ئ د تدبیر
غوځ پر شه ضمیر

9 په تدبیر هغه زمان میجر یوړته په خپل ښان
کړ ډولئ ته عزیز خان

ورته لاړ سردار د ننګ زړه ډیر وه په وسواس چه رانه
خلاص دَ منګل باز شه غم په ما دراز شه

٭

2 بو باز خو عزیز خان وه ښکاره په درست جهان وه
د توری پهلوان وه
زخمی شهٔ په پیواړ ودریده ولاړ میجر زهیر
غوغ پر شه ضمیر
میجر وُولـه واره بهادره صوبداره
اوس پاخه په قرار چه پورته شه سردار
لاړ تار په تار په زمکه خور شه مرمر فراق پر زور شه

3 خور شه ګل وه دَ نمیر واوره دور ئې شه تیر
تمام به ئې سیر
کوئ پری د اجل شوه برابر د فتر پرِ ساز شه
غم په ما دراز شه
کوئ وه دَ بیلتون راتله په شبخون
پری مات ئې شه زنګون
درون شوه په کښ پاتِ په قدرت پاک دَ قدیر
غوغ پر شه ضمیر

4 قدرت ته د رب ګوره جنګ توله ورځ وه وروره
دوند خور شه تیاره توره
نه څوک په فوځ کښ ومړل نه بل څوک زخمی نه شور شه
مرمر فراق پر زور شه

13 امیر خان او فقیر خان    بندي دي د کورستان
زه هم خم یمه روان
اوس به خوک کاندي بخلا کریم الله
پاتي سر تور شه    مرم فراق یم زور شه
سر سرتور به واویلا    به وي تل کریم الله
ته ئ شي تکیه الله
حال یم هیڅ نه شه معلوم لارم سرکوم
غرق یم جهاز شه    غم په ما دراز شه

14 رب جهاز کړ خما غرق    تیر شه لکه برق
هیڅ په دي کښ نشته فرق
یکتنها په بند روان د رب منان یمه اسیر غوځ یم شه ضمیر

15 بندي خم په لوي سفر    که یم دوست وه که نوکر
چا یم وانخست خبر
کله مند یم له هرچانه    د خپل خانه
یم زره تور شه    مرم فراق یم زور شه

16 زړه یم تور شه لکه سکور    نه یم خپل پردي نه ورور
کینبود پل خما پلور
چا یم ونه کړه پوښتنه    تن خما په اور گداز شه
غم په ما دراز شه

17 په اور وسوم پاک غفور    که یم ورور وه که تربور
نه شه ماځه حضور

اسپتال ته ئې رخصت هغه ساعت کړ دور نور شه
مړم فراق پر زور شه

•

10 نور ئې زخم د پرهر   له خپل لاس نه کړ ډاکټر
ترې کولئې کړه باهر
زيات ئې زخم يو په دوه شه   غوښ ترې لحم په مقراض شه
غم په ما دراز شه
په مقراض ئې پوست او ګوښت   پرې کول د زړه په سوخت
وه بهادر سردار په هوش چه به دړد وربانده راغی
غاښ به وچيچل تچير   غوښ پر شه ضمير

11 تچير تن وه د سردار   په يو دم شه خوار و زار
ترې ډاکټر وکړ انکار
چه دارو ئې اثر نه کړ نا علاجه شراب خور شه
مړم فراق پر زور شه

12 شراب خور و دَ اجل   نه دارو شه نه څه چل
سردار وباله افضل
دا ئې و ورستي ديدن دی بل وطن ته پر پرواز شه
غم په ما دراز شه
بيا افضل ته په ښه شان   سردار وکړ خپل بيان
وبه مرمه په ارمان
داغ به زړه به ګور له يوسم امير خان او دَ فقير
غوښ پر شه ضمير

تیرئ شه د یکرئ وار زرئ اظهار
د مرک آواز شه غم په ما دراز شه

22 دا آواز د مرک په جار شه کوته کښِ د سردار
محمود وِ وشه تاتار
عبیدی سالتی دوارو سره مخونه کعره په ویر
غوغ بِر شه ضمیر

23 وو په ویرد خپل صورت عبیدی وُو که سالت
قرار نه وو یو ساعت وُ به مری سالت
له غه روغ عالمه کرو کور شه
مرمر فراق بِر زور شه

## 25

### LES ESCROQUERIES DES GENS DU COMMISSARIAT.

### GHAZAL DE GHAZALDIN.

### در بیان حرام خوری اهالیان کمسریت

1 هرچا واخستل تنتوان دَ کمسریت
په خلور آنی اوشان دَ کمسریت
2 بیسه کم په دوه آنی تنتو خرخیری
پیښور کښِ په میدان دَ کمسریت
3 د لندن دَ ککتی نه هرخه راغله
هم وابنه لرکی چرکان دَ کمسریت

وه بې ننګه عظم خان عباس په شان کوم تقریر
غوخ پر شه ضمیر

دا تقریر په ورستی وار تیر افضل ته کړ سردار 18
ساه ئې وخوت په قرار
افضل کړې چغې په زوره ګکین وروړ پرې نسکور شه
مرم فراق پر زور شه
نسکور پرېوت افضل سرنګون په زړه سول سول
چه په هوش شه واوره ګل
کړ پرېوت ئې د مرګ زر خفه میجر په دې الفاظ شه
غم په ما دراز شه

میجر وکړ پرې ګریان سور افسوس هغه زمان 19
په بیلتون د عزیز خان
بیائې کړ حکم په جار صندوق شه تیار د ګل ضمیر
غوخ پر شه ضمیر

په صندوق ئې پوره پاؤ مثالې کړلې لګاؤ 20
پرې چهل صد روپئې شوی داؤ
په کښې کېخوده سردار په خوی آبدار
بندی دګور شه مرم فراق پر زور شه

کورئ شه مقام اخیر عزیز خان سردار وُه شیر 21
سخاوت وُه په کښې دیر

ځوك چه عزتدار وِی د هغو خلقو غزت كوی
مرسته درهزن د بدلمن د جوارګرنه کا
دوئ له خپل نیته د ملكونو بادشاهت كوی
نه وایمه خلان ځوك دِ پدی كښِ تصورنه کا
آخلی ګرم باج په هریو راج په نوابانو كښِ
نیاو شته د کمزوری زوراور په صاحبانو كښِ
دیر تری امیران د خراسان خوف وخطر لری
لوی عدل انصاف وارِه انګریز اقبال د نور لری

ځكه امیران بارکزی ټول شو كوروكر سره 2
فوج تری د انګریزو هرطرف ته چاپیره شنه
جوړئ صلحیت كړپه حكمت په لوی هنر سره
ستون شوِل لښكری پستنه حال چه ښكاره شنه
بوت کمناری صاحب یعقوب د څه لښكر سره
مړئ بی ګناه كړلام وریورته دوباره شنه
وئ كړپه جار قتل د ښهر په قصابانو كښِ
نیاو شته د کمزوری زوراور په صاحبانو كښِ
دیرئ كړپهانسی په اخلاصی كه ځوك نظر لری
لوی عدل انصاف وارِه انګریز اقبال د نور لری

وِدِ كړی نظر كه ځوك باور په دی بیان كوی 3
بل ئ د كابل بادشاهی واخسته په زور سره
ویرونه ښځی نر د خراسان كوی
بوئ ته یعقوب غندی امیر بندی له مور سره



IMPRIMERIE NATIONALE.

4 لوی واړه چه په غزا پسی روان شی
اول خل شی دښمنان د کمسریټ

5 که سرکار دوباره نوم د کابل واخلی
هغه دم وینم کړیان دَ کمسریټ

6 نور سپایان توپک په توره خیل ځان خلاص اا
اسباب ولی نوکران دَ کمسریټ

7 کوټ آغوستی بوټ په ښپو لاتیٌ په لاس کښ
کاکه کرزی کل منشیان دَ کمسریټ

8 پلار نیکه ئُ چرته خر لیدلی نه وُه
په تمنم کښ ځی سیتهان د کمسریټ

9 غازالدین روره صبر وظیفه کړه
بس کړه بربرده نور داستان دَ کمسریټ

## 26

### LA JUSTICE DES ANGLAIS.

BALLADE DE MAHMOUD.

### انصاف د انګریزو شعر د محمود
### ساکن د مرغز علاقه د مردان

۱ نیاو شته د کمزوری زوراور په صاحبانو کښ
لوی عدل انصاف واړه انګریز اقبال د نور لری
عدل عدالت انصاف په ډیر مناسبت کوی
فرق مقدمه کښ د کمزوری زوراور نه کا

پری نښود یو امیر د نوم په فارسیبانو کښ
نیاو شته د مزوری زوره‌ور په صاحبانو کښ

•

شکه یې فرمان عبد الرحمن په سترکو سرو لری
لوی عدل انصاف واړه انکریز مثال د نور لری
نیاو شته د مزوری زوره‌ور په صاحبانو کښ
لوی عدل انصاف واړه انکریز اقبال د نور لری

•

## 27

### MOUQARRAB KHAN ET LE MASSACRE DES KHÉDOU KHEIL.

BALLADE D'ARSAL.

### د خدوخیلو

1 څه ناڅاپه شور شه کور په کور شه ویر
څه غاړی د وکړی محمد میره
کور د وران شه خلق په لړزان شه
خان او خدوخیل نښتی وو په ډیل
یو ځای شو سره میل
دروغی کوی بند دارنګ آواز یې لور په لور شه
څه ناڅاپه شور شه

2 فیروزی وی په حکمت کوو روغه دا ساعت
امازی به کړو رخصت

خوك چه له انګریزو سره جنګ په سپین میدان کوی
خان به پری لمبه که چه کوی لوی له اور سره
شه عبد الرحمن امیر د دوی مصاحبانو کښې
نیاو شته د مزوری زوره‌ور په صاحبانو کښې
حکم د کابل به کوی تل خان ئې نوکر لری
لوی عدل انصاف واړه انګریز مثال د نور لری

4 خان ګڼړی نوکر د انګریز نه وایم دروغ چری
ملك ئې په قوت ورته رعیت تر قندهاره کړ
بیا به بارکزی امیر په عمر نه شی بوغ چری
جوړ ئې په کښې سرك تر غزنی تر پیښاوره کړ
پاتې به ایوب د ورور له غمه نه شی روغ چری
بندئ را باهر په اته کروه کښې له خیبره کړ
اوس دې ایوب خان وشمیری خان په غریبانو کښې
نیاو شته د مزوری زوره‌ور په صاحبانو کښې
لاړ شه تر هراته نه مال بساط نه څه لښکر لری
لوی عدل انصاف واړه انګریز مثال د نور لری

5 چا چه د کابل کړی انګریز سره خدمت دی نه
لوی انعام اکرام مواجب ئې ورکړ قیصرسان دی دوئ
عدل کړی پلاس ئې د اوطانو حکومت دینه
هیڅ کمی ئې نشته دی د تور بهادران دی دوئ
نیت د راپنسن صاحب محمود لره دولت دینه
وصف کړی د ګل انګریزانو بادشاهان دی دوئ

غلام او شیخ حسین وه د مولی نه ئې مخ تورشه
څه ناشاپه شورشه

8 بیا خان ویل فیروزه تکئ کوی هر روزه
پنجتار لره بر بوزه
زه د ملک سرداریم دربه درشومه فقیر
کوربه کورشه ویر

9 فیروز وې خمونږه خان یې رازه منه کوه ویرانې
کوټ به کړو ودانې
دربه کړو پنجتار خمونږه تاسره قرآن شه
خلق په لړزان شه

10 خان ویل ورته څرکند دا ساعت کوی سوکند
بیا به جوړ کړی لاله کند
راسره به وکړی تکه که لښکر له مانه خورشه
څه ناشاپه شورشه

11 جرګی ورته ویل مونږ تکئ به کوو خله
خمونږ خان تل ترتله
غفور خان به کدئ ناست دی مونږ نه ئې یو دعوای کیر
کوربه کورشه ویر

12 خانان بر شوهغاره جرګه کښې ناست وو دواره
امازو وکړه پیشاره

خان به شي يوازی مونږ به مړکړو محمد مير
كوړ په كور شه وير

3 بيا خان له به جواب مونږ وركړو په شتاب
ظفر به كړو خراب
خپل د امازو دی مونږ ته كار د فتنی گران شه
خلق په لړزان شه

4 جرگی وكړه صلاح د هريو په زړه وه غلا
غازی كوټ به كړو تالا
غزن دخان پره وه چه خبر په دی انگور شه
څه ناڅاپه شور شه

5 غزن كه خان خبر دَدِ حاله سراسر
وِی نه كړی پری باور
په جمعه خدوخيلو ستا د مړك وكړ تدبير
كور په كور شه وير

6 جرگه ووژنه په جمعه خپل ځان كړه تری بيغمه
ونه كړی ورته طمعه
مړئ كړ خپل قام مقرب خان په دی گران شه
خلق په لړزان شه

7 جرگه او خان يو ځای شوه تكيه مِ ر په بنه خدای شو
د دوی سره همراه شو

وُ ملک دَ مداخیلو غوځ په تورو د ایران شه
خلق په لرزان شه

18 اسمعیل وی واورئ مطلب تکئ وکړه مقرب
مونږ ته ډیر دَی په غضب
بی له مرګه به پری نه ږدی غلبه ئ به مونږ زور شه
څه ناڅاپه شور شه

19 د جرګی د مرګ آواز شه دا غم وربانَدی ساز شه
هرچا سره غراز شه
هرڅوک ولړزیده نه چه دا غم ئ کور په کور شه
څه ناڅاپه شور شه

20 چا کړ ځان په تیښته خلاص څوک ئ کښیواته په لاس
هر سړی وُه په وسواس
ټوله شپه په تراره وو خدو واړه وو زهیر
کور په کور شه ویر

21 شپه شوه تیره بیا صبا له خبر شول له احواله
څوک خپه وُو څوک خوشحاله
غم زیات په عثمان خیلو په دوئ تیر هغه دوران شه
خلق په لرزان شه

22 دَدوئ تیر شه سلطنت مرګ ئ بیا موند شهادت
خدائ د ورکاندی جنت

ناڅاپه غلبله شوه خلق واره ځان په ځان شه
خلق واره په لړزان شه

13 امازی راغلل ناڅاپه دوئ ډیر وُو نا انصافه
خان شه وعده خلافه
وعده کښې دروغجن شه عالم څکه کروکور شه
څه ناڅاپه شور شه

14 خدوخیلو وی سنبالله خبر نه وُو له دی حاله
تالا والا شو لاله
ښتی راغله په خوارو دائ لیك وُو په تقدیر
کور په کور شه ویر

15 اسمعیل وی غفور خانه دا عرض واوره له مانه
بیدار شه په آسانه
کاکا مړك له ورنه کړی دا د مونږ سره احسان شه
خلق په لړزان شه

16 غفور خان ویل چه خان هم د زه وروك کړم هم خان
مړد کړ بام او عثمان
بری وروکیږی عثمان خیل فیروز مه وژنه دستگیر
کور په کور شه ویر

17 خان کړه مړه په امازو نه شو خلاص په ملازو
په کښې لاندی شو میزو

خاوری دَ دامان هغه خایسته گـل د نمـیـرشـه
جاړی په ارمان ارسلا خان سـتـرګـی سـری شـولی
څه ناګاهَ غړشه په مندنړوکښِ ناړی شـولی

2 جاړی پهٔ ارمان ارسلا خان په غم کـښِ ډوب دیـنـه
سوی په اور د بیلتانـه ظـالـم قـلُـوب دیـنـه
خان میرافضل خان لهٔ خلقو بیل ناست دی مخروب دینه
عرض کوی پهٔ خان څه ړِ شه پلارِ خوشی ډیری شولی
څه ناګاهَ غړشه پهٔ مندنړوکښِ ناری شـولی

3 عرض کوی په خان د اکرم خان جوړی خرابه شوه
برخه له خاونده ئی نصیب بی خورد و خـوابـه شـوه
په مرګ د اکبرئ سودا زباته له حـسـابـه شـوه
خان به نه شی روغ که په بام ډکی هـدیری شـولی
څه ناګاهَ غړشه په مندنړوکښِ ناری شـولی

4 خاوری ایری عمـر د سـردا خـان عـالم خـان شـه
پاتی په پنجتارکښِ بی دیـدنـه قـدردانـه شـه
په مرګ د اکبرچه شه خبرخالی مـیـدان شـه
هیرشه تر تدبیر د تقدیرکرم نـغـاری شـولی
څه ناګاهَ غړشه په مندنړوکښِ ناری شـولی

5 هیرشه تری تدبیرپنجتارئ پربخود پـه رضـا سـره
خان سره یوځائ شه په ډاګی کښِ په مـرضـا سـره

اوس ئې زړه په حق دوعاء کړم که ګلزار وربانـدی ګـور شـه
څـه ناځـاپـه شـور شـه

23 ګورستان که پری ګـلـزار آلـهـی پـروردګـار
خدائ دِ ورکړی خپل دیدار
د جنت حوری هـارونـه ورسـره مانـړی جـا ګـیـ
کور په کـور شـه ویـ

24 آخرتله دی پـه شـتـاب خلاص به نه شی خـان ارباب
نه پریږدی بادشـاه نـواب
ارسـلا دنـیـا فانی ده دَ هـرچـا پاتی ارمان شـه
خـلـق پـه لـړزان شـه

28

MORT D'AKBAR KHÂN.

BALLADE.

## دَ اکبر خان مرګ

1 څه ناګاه غږ شه په منـدنړو کـښ ناری شـولی
مړشه اکـبـر خـان غوځ د خـان د زړه قـطری شـولی
څه ناګاهٔ زوګ شه اکـبـر خـان له دنـیـا تـیـر شـه
نه راځی په یاد کښِ نورانی بـشـرہ هـیـر شـه

# DEUXIÈME PARTIE.

## CHANSONS RELIGIEUSES.

---

## 29

### LES PRIÈRES.

#### GHAZAL DE PÂYÂB.

غزل د پایاب شاعر د ډوډیالو اوسیدونکی

1 مومنه پاڅه وختی ته عبادت کوه
رب له پېښځه مونځونه په جماعت کوه

2 مومنه پاڅه سحر په دین کښې وکړه تلوار
ما نځه کښې نه شی ایسار رب له صفت کوه
مومنه پاڅه وختی ته عبادت کوه
رب له پېښځه مونځونه په جماعت کوه

3 ماسپښین لس رکعاته کارونه تول که شاته
زاری کوه الله ته غم دَ قیامت کوه مومنه

4 مازیګر بنه دی څلور مومنان واړه وی کور
دین دَی راغلی په زور بماز ته ست کوه

دوارو جرګه وکړه د بامر خیلو په سزا سره
را ئ وست کړدون په ماتی سر جهانګیر دری شولی
رجپت په ګدون شه خان ئ وتاړه له خان سره
وکړ په غیرت وارو کومک ارسلا خان سره

3 اول ئې يار دى صديق ئې دَى كړى تحقيق
دَى ئې د محمد تو رفيق د هر سفر د نبى

4 دويم ئې يار دى عمر په بل چا مكړه باور
له ده دى هر څوك خبر تاج وه په سر د نبى

5 دريم ئې يار وه عثمان په بل چا مكړه گمان
وه لا په هغه زمان نيولى در د نبى

6 عبد الغفار عالمه شه توبه كار عالمه
څلورم يار عالمه شه على حيدر د نبى

## 31

### L'INTERCESSION DU PROPHÈTE.

### GHAZAL D'ÎSÂ AKHOUNZÂDA.

## غزل د عيسى اخون زاده

1 محمد نبى حشر كښې ربه ما يواځې مه كه
تول عالم به وِى خطر كښې امتيان ترى جدا مه كه

2 هغه ورځ به وِى ډيره گرانه وِى به غم په تول جهان
واې به دارنگه هرڅوك چه څمونږ څوك شفا وكه

5 مابشام ورنبی کوه فرض دا په هرچا ویم قرض
کومه خپل رب ته عرض پسی سنت کوه — مومنه

6 ماښخښن ته شماره دری په کښې وتر یاره
نه وکره فکر یاره دعاء په قت کوه — مومنه

7 دودیرش دی تول په حساب
په دوئ کښې دیر دی ثواب

8 رب ته دی عرض د پایاب
سوال د جنت کوه

9 مومنه پاخه وخنی ته عبادت کوه
رب له بینځه مونځونه په جماعت کوه

## 30

### LE PROPHÈTE.

GHAZAL D'ABDOULGHAFFÂR.

1 څما یادیږی خلقه شیرین بشر د نبی
دریغه پیدا وی هلته چه وی نوکر د نبی

2 څما یادیږی مدام زړګی بر نکه آرام
پاس په آسمان که سلام شمس وقمر د نبی

# 32

## L'INTERCESSION DU PROPHÈTE.

### GHAZAL DE TAVAKKOUL.

## غزل د توکل د ننګرهار

1 په ورځ د محشر ای نبي
دست ما دامن تو

2 یو سل څله خوله کنګال که په ابو د حیات
چه په خولی نوم لاله راځی د نبی
دست ما دامن تو

3 یو لکه څلورویشت زره زیات و کم مرسلان
په دغو وارو کښی سردار دی نبی
دست ما دامن تو

4 بغیر د رب له حکم
یوه پانړه د شجر نه رپی
دست ما دامن تو

5 چه حکم وشی
هغه یو ساعت انکار نه لری
دست ما دامن تو

3 بابا آدم ته به کړی سوال بابا کوره خمونږ حال
که دوعاء لاله ته ور کړی دغه وقت دی وفا وکه

4 بابا آدم به وایي عالمان زه پخپله یم کړه مان
پروردګار راته قهربږی چه نن ماسره به څه که

5 وایي به نوح موسی عیسی ته ابراهیم خلیل الله ته
بی له تاسو په نظر کښې نور به څوك وی چه به ښه که

6 دی به وایي خلق ته جانه مونږه یو ګنهګاران
دا صفت دی په سرور کښې ستاسو کار به هغه وکه

7 محمد به په شتاب کړی سوال له پاك جناب
زه راغلی ستا په در کښې تا وعده کړی وه څکه

8 پروردګار به وائي دلبره ستا وعده به کړم ترسره
شفاعت چه پیغمبر کړی عیسی ګل تری خطا مه که

6 دَ ده دپاره پروردګار زر دنیا کړله طیار
بیا پیدا کړی اووه زمکی هم اُووه واړه آسمان

7 بیا سلطان سکندر دا بادشاه وُه زوروُر
په هوا کښِ تختنشین وُه پیغمبر وُه سلیمان

8 بیا لقمان حکم په شان چرته نه وُو طبیبان
دَ مرګی چه پری آواز شه شول دارو ترینه نسیان

9 دغه واړه زوره واڼی هم دینداره معتبر وو
دَ دوئ زور شه دلته پاتی مونږه څوك یو عاجزان

10 فکر وکړه که هوښیار یې که بنده دَ ګردګار یې
ته زه هم به پاتی نه شو مونږه یو مسافران

11 را شه را شه اوس سودا کړه څه توښه ځان له پیدا کړه
دی بازار کښِ ارزانی دَه هلته وی به هرڅه ګران

12 پېنځه وقته زه دوعا کړم بله نه دَه هغه دا کړم
که داخل ربه ته واړه په جنت کښِ مومنان

13 عیشی ګله اوس ضرور په ژوندون مه شه مسرور
په لحد د تورو خاورو په تا کښِ به شی باران

14 زه عیشی عاصی یې شانه دغه سوال کوم له تانه
په حساب به زه خلاص نه شم هلته کړه په ما احسان



IMPRIMERIE NATIONALE.

6 توکل پاخه په اخلاص که رب یاد
مولا به درکه جنتونه په دا نیمه شپی
دست ما دامن تو

# 33

## MÉDITATION SUR LA MORT.

### GHAZAL D'ÎSÂ AKHOUNZÂDA.

### غزل د عیسی اخون زاده

1 بلبلان شو باغچونه ای عاقله راروان
تری نه پاتی شو دگلو د گلابو ډك بوستان

2 دا دنیا مثال دَ باغ دَی هر انسان ته کوره زاغ دَی
جاهلان پری خه پوهیږی پری پوهیږی عاقلان

3 فکر وکړه که هوښیار یی که فقیر یی که سردار یی
دغه باغ نه به کړی کوچ که ناطق دی که حیوان

4 خما دی نظر ته کوره پری خپکان مه کوه وروره
دواړه غور پری باندِ کیږده زه کوم درته بیان

5 محمد آخر زمان پیغمبر وه د سبحان
چه نیته د ده پوره شوه پاتی نه شه په جهان

خی به یکانه    ترکور ستانه 6
شا به که تا ته    غوږ نسه ماته
آخر فنا دَه آخر فنا دَه

چه په کفن شی    گورکښې دفن شی 7
هلته به څه کړی    چه اوس ښه نه کړی
آخر فنا دَه آخر فنا دَه

عمر زر کاله    که دِ وِی لاله 8
آخر به تیر شی    که هر څو دیر شی
آخر فنا دَه آخر فنا دَه

لکه څه لاړل تمام یاران 9
ته به هم لاړ شی دَ دوی په شان
څای دِ دَی خاوره    دا پند پِر واوره
آخر فنا دَه آخر فنا دَه

نن دِ هنگام دَی    چه روغ دِ کام دَی 10
مټ په طاعت کړه    لری غفلت کړه
آخر فنا دَه آخر فنا دَه

زرکه دِ زبات شی    تول به میرات شی 11
عبث دِ شور دَی    مکان دِ گور دَی
اخر فنا دَه آخر فنا دَه

# 34

## MÉDITATION SUR LA MORT.

### GHAZAL D'ÎSÂ AKHOUN ZÂDA.

### غزل د عیسی اخون زاده

1 ای ادم زاده فانی دنیا دَه    په مخ د زمکی دچا بقا دَه
عبث واړه دولت غنا دَه    آخر فنا دَه آخر فنا دَه

2 هیر دِ خښتې دی    گور دِ وطن دی
دا کار چه ته کړی    هرگز بشه نه کړی
آخر فنا دَه آخر فنا دَه

3 حرص دِ ډیر دی    مولی دِ هیر دی
دور دِ نور دی    وطن دِ گور دی
آخر فنا دَه آخر فنا دَه

4 فکر په ځای کړه    طاعت د خدای کړه
امر قبول کړه    شیطان ملول کړه
آخر فنا دَه آخر فنا دَه

5 اجل چه راشی    یار نا اشنا شی
تول وبزاریږی    نه پکاریږی
آخر فنا دَه آخر فنا دَه

6 چه بادشاه د درست جهان وُه پیغمبر آخر زمان
لہ جهانه شه روان دیگرِ کیست که میمانی

7 چه صباحی مخ تور کور لہ تنگ لحد هم قبر تور لہ
مال دِ لاړ شی میراث خور لہ ته تبرِ ذروی ارمانی

8 نن دِ وار دَی دَ دین کار کړه دَ آخر خرځ دِ طیار کړه
ای مومنه ځان هوښیار کړه را شه مه کړه نادانی

9 زه بنده ډیر گنهکار یم په گناه مخ تورن خوار یم
د نظر ستا امیدوار یم د صوات غوثه صمدانی

10 د واحد د باغ بلبله دَ حضرت د شری گله
مرتبه دِ شه ترترله په هرچا شی فوقانی

11 په سیدو کښِ ئ مکان دَی ډیر پرِ فضل د رحمان دَی
شور ئ کړ په درست جهان دَی دین اسلام پر روښانی

۱۲ کہ خان امیر وِی یا خوار فقیر وِی
کفن بہ موی چہ گور تہ دروی
آخر فنا دَہ آخر فنا دَہ

## 35

### MÉDITATION SUR LA MORT.

GHAZAL.

### غزل

1 واوری ای مسلمانانو دَدِ دنیا دی کار فانی
خرڅ طیار د آخرت کړی چہ بیانہ کړی پښیمانی

2 چرتہ لاړ خلیل الله شہ چرتہ لاړ ذبیح الله شہ
چرتہ لاړ کلیم الله شہ چہ پہ طور وُہ نورانی

3 چرتہ لاړ اکبر بادشاہ شہ چرتہ محمد شاہ بادشاہ شہ
عالمگیر چرتہ فنا شہ گور لہ تللی ارمانی

4 سکندر سلیمان څہ شو کہ دارا شاہ جہان وُہ مړ شہ
پلار نیکہ د پاتی نہ شو تول مخلوق بہ شی فانی

5 کہ خانان کہ سلطانان دی کہ ښایستہ ځلمی خوانان دی
تول پہ گور کښِ بندیوان دی خاوری شوی ئی ځوانی

# 37

## APPEL À LA CLÉMENCE DE DIEU.

### GHAZAL DE TAVAKKOUL.

## غزل د توکل

غم دِ ما ما سره همراه دی بی له غم به دِ کړیږمه
ښادی نه نه وینم په سترګو په هیڅ رنګ ترِ نه خلاصیږمه
غم دِ ما ما سره همراه دی

دنیا نه نه غواړم له تانه آلهی پاك سبحانه
ماته دور دور دی په ګلګونه له نامی نامی نه دِ زاریږمه
غم دِ ما ما سره همراه دی

زه په تاتا باندی نازیږم ته بیشکه ننګیالی یی
لړزیږ وُوُ نسه له لاسه په صراط باندی تیریږمه
غم دِ ما ما سره همراه دی

منصور یو یو څله په دار دار باندی ختلی وه یارانو
زه منصور منصور نه یم نور څه یم چه سل څله په دار باندی سوریږمه
غم دِ ما ما سره همراه دی

زه چه تیر تیر ساعت را یاد کړم ګله وازده وازده ولیکیږمه
زه توکل توکل قصیده لولم د هوسی هوسی په شان ربګدمه

# 36

## APPEL À LA CLÉMENCE DE DIEU.

### GHAZAL D'ÎSÂ AKHOUN ZÂDA.

## غزل د عیسی اخون زاده

1 دَ قیامت له غذابونو ربه ته راکړی امان
ګنهګار یمه بې شانه څه به کړم په ګورستان

2 ګناهونو ته چه ګورم زه چه ګورم بې حساب دي
حسابیان ترِ لا جواب شکلی نه شی کاتبان

3 زه چه هسی رنګ عاصی یم ای سخی هم بدکرداریم
ستا د فضل امیدواریم بل امید نه کړم په څان

4 امید څکه د رحمت دَ کرمه تا وېلی
په کتاب کښِ ما لیدلی ناامید تری دی شیطان

5 زه اګر که لایق نه یم ربه نه یم دَ جنتونو
ای صاحب دَ نعمتونو کړه نصیب څما جنان

6 بندوبست ته د نیکو اوس دَ نیکو کړه عیسی ګله
حساب ور به کړی په تله چری نه شی هلته حریان

# 39

ADAM.

## د بابا آدم بیان

1 ښځوا له بابا آدم چه آدم واړه په شمار وُو
لس دری شلی اظهار وُو
2 ښځوا د بابا آدم له زمانی نه په یقین
تیاره وه په زمین
3 په سترګو څه لیدی نه شو په زمکه وُه اندیر
دندونه وُو چاپیر
4 یو ستوری وُه په قطب چه رب دَی که را حضور
دونه شه له ملکه دور
5 دا نور د پیغمبر نبی سرور وُه سامعانو
دروغ نه دی یارانو
6 رڼا شوه په هر لوری دَدِ ستوری له قوته
قربان ئی له صفته
7 غاښونه د نبی په خوله کښِ دُر ایښی ستار وُو
لس دری شلی اظهار وُو
8 غاښونه اخونه تك سپین لکه مرمر
خمونږ د پیغمبر
9 له نوره پیدا کړی آلهی د ده صورت وُه
لوی حسن د حضرت وُه

غم دِ ما ما سره څراه دی بی له غمه دِ کړیږمه
ښادی نه نه وینم په سترکو په هیڅ رنک رنک ترِ نه خلاصیږمه

## 38

MÉDITATION.

GHAZAL DE SHÂH GOUL.

### غزل د شاهٔ کل د پیښور اوسیدونکی

1 غم کړم غرقاب په سر بالا    نفس و شیطان ځمونږ څراه
غم کړم غرقاب
څوك چه چاندی زر کاندی جس    کافر مطلق دی بُت‌پرست
شریك پیدا که د الله
غم کړم غرقاب په سر بالا    نفس و شیطان ځمونږ څراه

2 د زمانی احوال شه نور    خاونده تاته بِرمخ تور
کاسیر شه غل ای مُلا
غم کړم غرقاب په سر بالا    نفس و شیطان ځمونږ څراه

3 د کافرانو ځای دوزخ    مسلمان که خندا هوس
امت دَی دِیر د رسول الله
غم کړم غرقاب په سر بالا    نفس و شیطان ځمونږ څراه

4 شاهٔ کل مرید دَی د لوی ځوان    په ده نظر د پاك سبحان
ترینه چاپیره د غم قلا
غم کړم غرقاب په سر بالا    نفس و شیطان ځمونږ څراه

22 چا امر منلی وُه د پاك نبی سرور

خوراك به ئې وُه ثمر

23 چا بیفرمانی کړه چه راغلی ئې قضا وُه.

موندلی ئې سزا وه

24 په هغه زمانه کښ سنیان کمر واړه کفار وُو

لس دری شلی اظهار وُو

25 په امر د خاوند به جبرائیل له حقه راشی

باور که دِ په دا شی

26 حرفونه د قرآن به واړه وخیژِی پورته

حریان ئې بمه زورته

27 خالی به که کاغذ پره ئې تیره ده بی حسابه

قصه ده له کتابه

28 راکوزی به کړی خوځی د کوه قان دغره په سر

تمام هغه لښکر

29 دانور به له قبلی نه سمدلاسه راښکاره که

هر خوك به ئې ننداره که

30 پستنه به کړی شاکرده د تو بی دروازه خاصه

قصه شوه پدی خلاصه

31 نامه بِر د محمود یره بِر نه شی له خناسه

کوم خبره راسه

32 و هلی به چنبه محمود شاعر خو دیر بسیار وُو

لس دری شلی اظهار وُو

10 په مخ د محمد رسول دنیا شوله ودانه
بڅوا وه له دی ورانه

11 مځه زمکه نه آسمان وه خو دا نور وه تمامه
هرڅوك ړ وكه فهم

12 نه عرش وه نه کرسی وه نه پیدا وو جنتونه
دا واړي کتابونه

13 داټول د کان له نونه پیدا کړی کردکار وو
لس دری شلی اظهار وو

14 پیدا شه پیغمبر جسه ئې دکه وه له نوره
دنیا شوه پری معموره

15 کامل چه تیر شو لاله څلویښت کاله برابر
د پاك نبی سرور

16 حضرت جبرائیل پری وحیه راوړه له ثوابه
له حق په شتاب

17 پس ئې له سلامه ورته دا کړی جواب وه
پوره په آبوتاب وه

18 ښکاره د میم او حی او میم او دال د نبوت که
تالاش د خپل امت که

19 په تالاش د خپل امت هغه ساعت رسول الله شه
په امر د الله شه

20 غزا به ئې کولی اصحاب له دی سره وو
ملکونو کښې پره وو

21 هر یو په خپل علم باندی غالب وه لکه شیر
قوت به ئې لره دیر

عالم ستا په مخ خلاصیږي ماکه خلاص پیغمبره 3
هوسۍ تله د سیل په خیرمه په دام کښ بند شوه ناخبره
پیغمبر ویل دا زمان دا هوسۍ پریږده خما یاره
دوه بچي دي له لوږي نه پرکیږي ناقلاره
دا ورشي تر هغه ځایه یو ساعت نه شي ایساره
بیائې وړني که پریږدي درته وایم دل آزاره
که رانه غله هوسۍ ستا د محرم غلام
فرزند د ابو جهل هوسۍ ته پټ یښي وه دام

ولې ئې پریښوده هوسۍ بچو ته لاړه برابر 4
هوسۍ تله د سیل په خیرمه په دام کښ بند شوه ناخره
هوسۍ ویل بچو ته تې ږ واخلی په تلوار
زه په بیرته به جاروځم پستنه په دغه لار
کافر له ږ ورکړي د تمام جهان سردار
خما تر وتو پورې به لا دې هلته ایسار
بچو ورته ویل مورې ستا تي په مونږ حرام
فرزند د ابو جهل هوسۍ ته پټ یښي وه دام

په شتاب شتاب جاروزه کور ته تر هغه دره 5
هوسۍ تله د سیل په خیرمه په دام کښ بند شوه ناخبره
راغله هوسۍ چه جوړ ېږي تیر نه شه ساعت
اوس ئې وړني که پریږدي که ئې درکړمه قیمت
کافر وی ما بخښلی ده په نوم د پاك حضرت
زه ایمان په تا راوړمه که ږ وکړې شفاعت
نبي پېر ووهه لاس صاحب ته وئې کړ سلام

# 40

## LA GAZELLE ET LE PROPHÈTE.

### BALLADE DE NÂSIR.

## چاربيته د ناصر شاعر د هوسۍ په حق کښې چه ئې ويلې دَه

1 فرزند د ابو جهل هوسۍ ته پټ ايښي وُه دام
هوسۍ تله د سيل د پاره په دام کښِ بند شوه ناخبره
هوسۍ تله د سيل په خيرمه په دام کښِ بند شوه ناګمانه
د فراق اوښي ئې لاړې طمعه قطع شوه له خانه
آخستې نغس شيطان وَه خبر نه وه له نقصانه
په رحم ئې سوال هغه زمان وکه بې شانه
دوه بچي مې پاتې کيږي تل کوه پرې باندې فهم
فرزند د ابو جهل هوسۍ ته پټ ايښي وه دام

2 ولې په هيڅ دستور مې دام خاونده نه خيژې له سره
هوسۍ تله د سيل په خيرمه په دام کښِ بند شوه ناخبره
فرزند د ابو جهل هوسۍ له راغې په تلوار
ده وې چرته به خلاصيږې درته يم نيولى قهر
ښت ئې تاو که د هوسۍ ده پرې را و ښکه ذو الفقار
اجل نه وه د هوسۍ مولائې لاس کښِ پر ايسار
ناګهانه ئې کتل چه پيغمبر راغې له شام
فرزند د ابو جهل هوسۍ ته پټ ايښي وه دام

خما تیر شوی دی زر کاله ترینه تا کرمه برسیره
هم پیدا یې له بابا دَ بابا آدم پسري

4 لعنت په ابو جهل شه چه په دین کښې ئې وکړ شرم
دَ صاحب په معجزه باندی صورت ئې نه شه نرم
دَ پرشو تنو ایمان راوړ مسلمان نه شه بې شرم
بیا په زوره ئې ناری کړی محمد جادوګري

5 جادو نه دی کافره دَ حضرت وګه سلام
خپل په خپلو بدی وایي ته فرزند یې دَ هشام
هشام تل دَ محمد کاروونه کاندی واړه خام
زنګ دَ ورك نه شه له کفره خوبش په کفر کښ کافر یې

6 الاوند کښې پر لیدلی دَ شها دَ مخ بوتیٔ
بوری وری پر ختلی پیښور کونه شتیٔ
زه پری وسوم تا پری کیښوه شتیله غنه باتیٔ
نوردینَ په دوعاء میان الداد دَ میان عمري

فرزند د ابو جهل هوسئ ته پټ یښي وه دام
کافر شه مسلمان ناصره خلاص شوي له سغره
هوسئ تله د سیل په خیرمه په دام کښ بند شوه ناخبره

# 41

## L'OISEAU DU PROPHÈTE.

### BALLADE DE NOUREDDIN.

## چاربیته د نوردین شاعر

1 مارغه وباسه له کاڼړی ته استاخي د اکبري
مومڼ به ستا په دین روان شو ته بیشکه پیغمبري
مارغه و باسه له کاڼړی ښیي ئې روڼي له تحقیقه
دواړه خانک ئې د لاجبرو بلوری غاړه تحقیقه
منقارئې د سرو زرو مرسته غواړی له رفیقه
رنګارنګ نښي په کښ سلیمان سترګي چغري

2 رنګارنګ نښي په کښ احمد کاڼړی که دوه ځای
کافران درته ولاړ دي پاڅه سوال کوه له خدایه
مومڼ به راوړو پړی ایمان د منافقو بدي وایه
معجزه د شوه ښکاره ایسار خله په حجري

3 حجر مات شه سوال قبول شه خلق مارغه نه شه چاپیره
ورته واې په دي کاڼړی کښ د خومده کړه تیره

4 ستا له رویه پر پیدا که عالم واره
یوه لور د ابو جهل ورته ولاره
پیغمبر و جینئ ماله گوته راوره
د جینئ له سره ولویده شالونه

5 د جینئ له سره ولویده یو شال
پیغمبر و جینئ وایمر درته حال
جینئ مینه شوله هلته په یو قال
په سکیا هندو باندی راځی د غمر کالونه

# 43

## LE JARDIN DE SHEDDAD.

### BALLADE DE GOUL MOHAMMED, DE DODIAL.

دَ شداد بادشاه په حق کښی چه گل محمد شاعر اوسیدونکی
د دودیالو چاربیته ویلی ده

1 جنت شه په اته خایه په بینا حکم د رب وه
شدّاد چه جوړوه پدی دنیا دا ئی سبب وه
شدّاد چه جوړه وه پدی دنیا دا ئی وه خیال
جنت به کړم پوره زه په هر څه باندی سنبال
جراوُ وُه پری یاقوت چه د مرمرو ئی د یوال
بیا بنی حوری حوران پکښی ساق دا ئی مرکّب وه
شدّاد چه جوړه وُه پدی دنیا دا ئی سبب وه


IMPRIMERIE NATIONALE.

# 42

## LE PROPHÈTE ET LA FILLE D'ABOU JAHL.

### BALLADE DE SOUKIA.

## چاربيته د سکيا شاعر

1 پيغمبر صاحب له مکی نه راروان شه
له پالکی سره ئې زانگی سره لعلونه
پيغمبر چه کلمه کړله په جهر
څه غلبله شوه د کافرو په بازار
ابو جهل وِ خما عمر شه پدار
نجوميان ئې ځای په ځای وايي حالونه

2 نجوميانو تاسو وګوری تورات[1]
ابو جهل وِ په ما څه وشه فسات
حليمې بيبی په کښِ شه وکه احتياط
له جنته وله راغله زيړ ګلونه

3 له جنته وله راغله بينځه ګله
يو شغله وَه رڼړا ئې به تری ختله
پاك پروردګار چه يوه خبره وويله
ستا له رويه پِر پيدا کړه عالمونه

[1] Variante : توريتيانو چه بر خيره که تورات.

# TROISIÈME PARTIE.

## LÉGENDES ROMANESQUES.

### 44

#### LE NAUFRAGE D'ALEXANDRE.

د سلطان سکندر بادشاه چاربیته چه په دریاب
په یو ګرداب کښې ئې جهاز غرق شوی وُه

اصله قصه دا رنګه دَه چه د سلطان سکندر بادشاه لوی وزیر لقمان حکیم
وُه د ملك ټول تدبیر به ده کوه او هرڅه چه به ئې ویل نو بادشاه به
منل لدی کبله نورو وزیرانو ورسره ډیره دښمنی کوله په خپل کښِ ئې
سره دا مصلحت وکړ داسی چل په کار دی چه بادشاه له لقمان حکیم نه
خپه شی او وئ شړی بیا په اتفاق سره بادشاه ته عرض وکړ چه حضور
د ټمامی دنیا بادشاه دی یعنی د زمکی د پاخه بادشاهت دِ شته مګر بایده
دی چه د دریابونو بادشاهت هم ستا شی او که تاسو د دریابونو بادشاهی
غواړی نو بیشکه د سیندونو مخلوقات به دِ تابعدار شی جوړ لقمان حکیم
راوبله او ورته ئې وُوِ زه غواړم چه په دریابونو کښِ څه زنده سر او بنی
آدم دِی هغه دِ هم خما په تصرف کښِ شی لقمان حکیم وُوِ جهان پناه
بلا دِ واخم تر اوسه پوری د دریابونو زنده‌سر هیڅا بادشاه رعیت نه دی
کړی او نه ئې لاندی کولی شی او نه داسی چا اراده کړی دَه بایده دی

2 بیا ښی حوری حوران پکښ ساق چینی حوضونه
د شهد و به لختی پکښ بهیده لکه سیندونه
د سرو زرو مانړیٔ ښی چبوتری ښکلی تختونه
شاباش په استکارشه څه جوړ کړی عجب وُه    شدّاد

3 شاباش په استکار شه د جنت کړ وله ساز
د سرو سپینو یٔ وی خپل هنریٔ که آغاز
د سرو زرو یٔ وی پرِ د پاسه که پرواز
ښیښی شش محلونه هر یو تخت ددی مرکّب وه    شدّاد

4 تختونه رنګارنګ وُو استکار جوړ که جنت
شداد ته یٔ مجره که وله وریٔ که محنت
شداد چه دی جنت ته ننوتو ته و که نیت
دروازه کښ که حصار دو ملائك لیکلی رب وه    شدّاد

5 ملائك وله راغلی وو له پاکه مهربانه
جنت یٔ که غائب خوښی دنیا ده له ارمانه
مرګی در پسی ګرزی امان غواړه له مجرانه
دوستی په چا کښ نشته مائ دیو کړی طلب وه    شدّاد

6 دوستی په چا کښ نشته خوښی مکوه لباس
له بدو توبه کار شه له یاریٔ وکاره لاس
ددی زمانی خلق چه هر سړی دی په وسواس
ګل محمد غواړی مدت له هغه میمه چه عرب وه
شدّاد چه جوړه وُه پدی دنیا دا یٔ سبب وه

واخستل چه په جهاز کښِ کښیناستل ناڅاپه په یو گرداب کښِ هغه
جهاز ورغی دا گرداب د یو نهنگ په سبب وُه هلته نهنگ پروت وُه څکه
درياب ډب خوړلی وُه د سلطان جهاز ډوب شه لاړ د درياب په بېخ کښِ
کښیناست مگر جهاز ته هیڅ نقصان ونه رسید څکه چه لا ورنبی ئی د
جهاز د مظبوطوالی بندوبست ئی کړی وُه   سلطان سکندر هک پک
وُه په هیڅ تدبير نه پوهیده ناڅاپه ئی د لقمان خبره ورته یاده شوه
سمدستی ئی دوه چیتئ په دی مضمون وښکلی چه زه د تالی درياب په
فلانی گرداب کښِ بند شوم بیا ئی دواړه خطونه تعويزونه کړل یو تعويز
ئی د یو کونتر له غاړی سره وتړه او بل تعويز ئی د بل کونتر له مرئ سره
دواړه ئی والوزول یو کونتر په لاری مړ شه او بل کونتر په خوارو زارو په
ډیر گرانوالی سره دَ درياب سر ته وخوت مگر ډیر ستړی شوی وُه څکه د
الوتو طاقت ئی نه وه په سیند کښِ لاهو شه چه څه قدر لاړ نو په یوی
جزیری کښِ ولگید هلته په کودر کښِ یو دوبی جای وښخلی وئی نیوُه
په غرمو کښِ ئی کیښود نو دا جوړ شه چه دوبی چه مرئ ته ئی وکتل
نو یو تعويز ئی په غاړه ولید هغه تعويز ئی تری پرانست او کونتر ئی خپل
زوی ته ورکړ   چه دوبی تعويز وسپړد نو په کښِ یو کاغذ د بادشاه مهر
پری پوری راوخوت په تلواری هغه خط ئی ښهر ته یوړ چه ملکه صاحبه
خبر شوه نو په ژړا او په واویلا سر شوه په هغه تکی حکم ئی وکړ چه
لقمان حکم راوبلئ اميرانو ورته عرض وکړ چه لقمان حکم د سلطان په
حکم سره یوه میاشت شوی ده چه جلادانو وژلی دی ملکه په غضب
شوه حکم ئی وکړ چه زر جلادیان راحاضر کړئ   جلادیان چه حاضر
شو نو ملکی ورته وُوِ په دغه تکی لاړشی او لقمان حکم حاضر کړئ او که
حاضر نه کړئ نو پوستکی به ستاسو له بوسو سره ډک کړم جلادیان لاړل
او لقمان ئی له کوټی راووست چه ملکی ته لقمان حاضر شه نو د بادشاه
خط ئی ورته وښیه او وئ ِو چه مهربانی وکه د سلطان د خلاصیدو څه

چه تاسو هم د دریابونو د آخستو او د تلو نیت هرگز مه کوی او که
ځی نو پښیمان به شی ډیر لوی زیان به درته ورسیږی چه دا خبره ئې
ترسره کړه نو هلته نورو وزیرانو او امیرانو بادشاه ته دا عرض وکړ چه
لقمان دِ نادان گنړی ځکه ئې داسی د بی ادبی خبری درته دِ تمام مجلس
دوراندی وکړی سلطان سکندر په لقمان حکیم بی شانه ډیر په غضب
شه بیائې سمدستی جلادیانو ته حکم وکړ چه لقمان حکیم فلانی کندی
ته بوځی هلته ئې حلال کړی غوښی ئې سپو ته وغورزوی جلادیانو لقمان
حکیم د وژلو د پاره روان که د روانیدو په وقت لقمان حکیم سلطان ته
عرض وکړ چه ای بادشاه ته خو اوس بی له دریاب سیل نه پاتیږی مگر زه
درسره یوه ورستئ نیکی کوم دا به دِ بکار شی که پرِ عمل کوی سلطان وُوِ
چه هغه نیکی څه دَه چه ته راسره کوی لقمان وُوِ چه ته دریاب ته
ځی نو یو کونتر هم له ځان سره واخله هرکله چه دریاندی څه سختی
راشی نو یوه چیتئ دارنگه وښکه چه زه په دریاب کښِ بند شوم بیا هغه
خط تعویز که د کونتر له غاړی سره وتړه کونتر به خپل وطن ته راشی
هرچا چه کاغذ دِ ولوست نو ستا د خلاصی بندوبست به هاله
وشی غرض دا چه لقمان جلادیانو هغی کندی ته چه بادشاه ورته
ښیلی وَه د وژلو دپاره بوت لقمان جلادیانو ته وُوِ که تاسو زه ووژلم نو در
ته هیڅ فائده به نه وِی او څما خاص یقین دَی چه سلطان به مِ بیا
رابلی که زه تاسو مړ کړم نو بادشاه به تاسو ټول تبر څما د قصاص په
بدل په تیزندئ که جلادیانو ورته وُوِ چه ای حکیم صاحب هر څه
چه ته تدبیر راته ښیی هم هغسی کار به کوُو لقمان وُوِ چه یو زوړ کوڅ
وکنی په هغی کښِ مِ کینوی خرځ خوراك هره ورځ لاله رارسوی جلادیانو
هم هغسی کار وکړ بیا جلادیان لاړل بادشاه ته ئې وُوِ چه لقمان حکیم
مونږ مړ کړ بادشاه وُوِ چه ډیره ښه بیا بادشاه له وزیرانو او دَ امیرانو
سره د دریاب دَ سیل دپاره روان شه دوه کونتر ئې هم له ځان سره

2 موافق وه په کتاب چه د وزیر نوم ئې حکم وُه
هر کارئ په تعلیم وُه
حکم په حکیمی کښِ ځان هرچا وته معلوم وُنه
لقمان حکم ئې نوم وُه
د لقمان حکم په شان چرته نشته وزیران
سلطان سکندر گوره بادشاه د کل جهان
وزیر وُه د بادشاه پوره محکم په خپل اسباب
خدای بند که په دریاب

3 بیا بادشاه ویل زه تاته په رښتیا وایم وزیره
زر ته وایه په خیر خیره
غټ په دی جهان تیر شوی دی ستا تر نظیره
چپ شوی یی له تاثیره
تاثیر وُه د بادشاه وزیر پرِ خکه وه حریان
سلطان سکندر گوره بادشاه د کل جهان
وزیر ویل بادشاه تاته شوی دی خطاب
خدای بند که په دریاب

4 وزیر په حقیقت سره ویلی وو بادشاه ته
دا حال وایمه تاته
غټ زه یم په جهان کښِ چه ښکاره یم هرچاته
ویریږم له فساته
بادشاه ویل رعیت ته چه وزیر کړئ بندیوان
سلطان سکندر گوره بادشاه د کل جهان

تدبير وکړه څومره تلوار چه درنه کيږي نو په ګښښ وکه او زر روان شه لقمان سمدستي په کروړونو منونه مالوچ تول کړل په اوښانو ئې هغه ګرداب ته ورسول بيا ئې هغه تول مالوچ په بورو کښ چه وو له بوروسره درياب ته يعني هغه ځاى ته چه د سلطان جهاز په کښ غرق شوى وُه وغورزول نهنګ هغه تولي بوري دمالوچو ونغړدلي چه کيدٖه ئې تکه شناز وپرسيدلهٔ هاله لهٔ هغه ځاى لري شه دب خلاص شه جهاز بيا د درياب سرته راغلي له لقمان سره د بادشاه ملاقات وشه و ئې فرمايل چه څوږوندى يم احسان به دٖ نه هيروم هم په هغه ګرداب بانګو بوه پنجه ئې د حکمت په هوا ودروله چه هر چاته ښکاره شي چه دلته ګرداب دى او پدى لاري هيڅوك جهاز نه راولي بيا سلطان له لقمان او لښکر سره صحيح سلامت خپل کورته را ورسيد او چه کومو وزيرانو او اميرانو د لقمان حکم په حق کښ سلطان ته چغلي کړي وُه هغه ئې په سولي کړل بيا به ئې څوري دچا چغلي نه آوريدله او نه به ئې دچا په ويلو باور کوه

١ سلطان سکندرکوره بادشاه د کل جهان
خداى بند که په درياب
سلطان سکندرکوره بادشاه د کل زمين
محکم د خداى په دين
د ده د بادشاهت په هر وطن باندى آئين
بيشکه وُه مومن
بيشکه وه مومن سني دى ښه وه مسلمان
سلطان سکندرکوره بادشاه د کل جهان
سني به ورته وايو چه موافق وه په کتاب
خداى بند که په درياب

چه را و ئ ویسته وزیر پخپله شه گویان
سلطان سکندر کوره بادشاه د کل جهان
اسبابونه ئ طیار کړل بنه پوره پخپل حسابه
خدای بند که په دریاب

8 اسبابونه ئ طیار کړل وزیر واخست رخصت
دریاب ته وکړ نیت
په دریاب کښِ یو نهنگ وُه چه خدایِ ده ته که اوچت
ده توپی کړی پرِقت
گولئ پری لگیدی نهنگ په بیرته شه روان
سلطان سکندر کوره بادشاه د کل جهان
ډِب خلاص شه جهاز راغئ د بادشاه په خپل حساب
خدای بند که په دریاب

9 بادشاه وزیران له دریاب شو بهر
په دوی جور شه اختر
پنجه ئ د دریاب دپاخه کیښوه د هنر
عالم شه پرِ خبر
عالم شه پرِ خبر د کل ویل دُرِّ مرجان
سلطان سکندر کوره بادشاه د کل جهان
ویل د کل محمد په سیل کښِ شی لکه سیلاب
خدای بند که په دریاب

وزیر ئې بندیوان کړه پټ د زمکې په حجاب
خدای بند که په دریاب

5 وزیر ئې بندیوان کړ بادشاه پس کول سیلونه
کاته ئې دریابونه
یوه ورځ په وله کښې راغلل د بادشاه بنه جهازونه
پر راغله سخت حالونه
بادشاه هلته شه حیران
سلطان سکندر گوره بادشاه د کل جهان
بادشاه و وزیرانو ئې خایه شو غرقاب
خدای بند که په دریاب

6 بیا پس له هغه بادشاه وته را یاد شه خپل کونتر
چه یوسی دا خبر
کاغذ ئې کړ تعویز کونتر په وله شه برابر
نور را پریوت په کدر
چه راپریوت په کدر په هغه کښې وو دوبیان
سلطان سکندر گوره بادشاه د کل جهان
دوئ ته په نظر شه زر ئې واخست په شتاب
خدای بند که په دریاب

7 دوئ ته په نظر شه دی حاضر شه په دلبار
کاغذ ئې که روئدار
چه چرته وزیران وو د حکم شو طلبدار
دی ئې را وویسته بهار

4 ګوجر خان د توری غړ هر پلو خور وُه
په منځ ښکښ هيڅوک نه وُو د ګذار

5 درخانی وی پيرمای کاکه فهم وکړه.
که درنه ئُ بوتلم ځما عمر به شی خوار.

6 پيرمای وی درخانی مه خپه کيږه
ور به دِ نه کړم پاياوی له ښه قلار

7 سل سواره ځما زغره پوش واړه د جنګ دی
دولس سوه پر توپک دی خبردار

8 دا به واړه دلته ستا په مخ کښ مړه شی
تا به بيا رانه بونه ځی ځه دِ کار

9 درخانی وی پيرمای ته واك دِ خپل دی
ستا په غولی زه راغلی ته پر پلار

10 پيرمای وی درخانی مه خپه کيږه
ستا ځما په مينځ کښ دی پروردګار

11 پيرمای وعده په تينګه ووېله
د آدم خان د درخو شه پر اعتبار

# 45

## ADAM KHAN ET DOURKHANI.

## قصد د آدم خان او د درخانی

هرکله چه آدم خان درخانی د پیرمای کره راوستله نو پیرمای خپلزوی کوجر خان ته وُوِ چه پایاوی د درخانی چنغول به راباندی ضرور لښکر وکړی اوس درته بایده دِی چه په تلواری لاړ شه او خپل عزیزان له دی حاله خبر که چه راسره کومك وکړی کوجر خان مابنړ ته لاړ او آدم خان هم له بلو او له میرو سره غره ته د ښکار دپاره لاړ په دی کښِ پایاوی سل روپئ بدی پیرمای ته ورکړی او درخانی ئ ترِ بوتله چه آدم خان دا خبره واوریدله نو له آس پریوت په دیران ولوید چه کوجر خان خبر شه نو خپل ئ و پلار ئ ووژه

I

1 ادم خـــان د درخــــانی د مـــیـــنی یار
دوارِه ووتـل پـردیـس ئ کـړ اخـتـیـار

2 د شپی لارِه د پیرمای کره دیره شـو
پـیـرمای د دیـرو کلـو وه سـردار

3 د پیرمای زوی کوجر خان دَ آدم دوست وُه
دوی له وتـه بـدل کـړی وُه دسـتـار

20 جینۍ وُو درخانی بیبی میرمنی
ستاسو کوچۍ له دولۍ راغله څه اسرار

21 درخانی سر غوړلی په کټ ناسته
دواړه زلفی ئې په مخ وِی تار په تار

22 د درخانۍ کونځی دی کولی
پیرمای په ورکښې ودریږد ناقلار

23 پیرمای وی درخانی زر اوچتیږه
لښکر راغی ډول ټبر پر شه په دار

24 درخانی وی کاکا څه غم درپیښ شه
زر شه وایه ما خبر کړه له دی کار

25 پیرمای وی پاپاوی دیر زوراور دی
تا رانه بیائی ورته زه شومه لاچار

26 درخانی وی پیرمای ته واک دِ خپل دی
ما ورنه کړی لاس نیولی زار زار

27 پښتانه په لوظ ولاړ په ننګ نیولی
د سپکاوی خبره نه وائی په جهر

12 پاباوی له ملکنده راروان شه
په آدم خان پسی راغلی وه په قهر

13 د پاباوی استاخی راغی پیرمای له
د پیرمای په خوا کښې کښیناست په قلار

14 استاخی وو پیرمای ته په جواب کښې
زه پاباوخان یم را لیږلی مار و مار

15 پاباوی وی درخانی ږ لاله راکه
سل روپۍ ئې رالیږلی دی په شمار

16 پیرمای روپۍ کره کړی کور ئې کیښوی
پاباوی سره یوه شوه د زړه لار

17 پیرمای کوجر خان ولیږه مابنږ له
آدم خان بلو میرو تلی وو په ښکار

18 پیرمای وی پاباوی ته دولی راوړه
درخو بیا کور ته څه نه شی ایسار

19 دولۍ راغله پیرمای کوټه کښې کیښوه
یوه جینۍ دننه لاړه په تلوار

36 درخانی یوه ښیره له خولی نه وښکه
د پیرمای په قامر ډِ وِی دَ کور آزار

37 برهان وائی د بی ننګئ سری به سپک وِی
تر قیامتَ به بادیږی دا ګفتار

## II

1 پیرمای درخانی ورکړه لاس نیولی
د سپکاوِی خبری هرچرته کیدلی

2 پاپاوی درخانی بوتله وخپل کورته
په سری دولئ کښِ خوشحالی به ئ کوله

3 ادمر خان په زړه کښِ وِ که کورته لاړمر
دَ درخو ستر ګی به و وِینم نازولی

4 یو سری وِ آدمر خانَ کورته مه ځه
پاپاوی درخانی بوتله جوړولی

5 آدمر خان چه دا خبره واوریدله
هغه دمر ئ د ژړا ناری و هلی

6 سمدستی له آسَ پریوت په دیران کښِ
خاوری ایری ئ په خپل سر ودوړولی

28 تا وېل چه سل سواره څما زغرپوش دي
دولس سوه پر توپک دي تخر طيار

29 پېرماي وي درخاني عبث واي
باباي دَي څما دېر بي حد په کار

30 درخاني وي پېرماي ته څما پلاره
د خداي دپاره بيا پر ورنه مه کړي دوباره

31 پېرماي وي درخو پاڅه په حيا کښې
څه دولئ له درته وايم په مدار

32 درخاني وي کاکا سر پر غوروله
د رب دپاره يو ساعت ته وکړه وار

33 پېرماي درخو په زور دولئ له بوتله
له څته ئې ونيوه بي ترسه وُه مردار

34 درخاني به د ارمان ژړا کوله
په پرديس کښې آدم خان شه تر کنار

35 دَ درخو په مخ سيلاب د اوښو راغي
په ګريوان ئې څڅي دي زره ئې بيمار

15 کوجر خان په نیلی سور وُه وریسی پریښو
دواړه واکی ئې د آس شټ ته وغورزولی

16 ښه آسونه ورځه لمی ئې نه وُه
د غم دوړی ئې له سر اوړېدلی

17 بینځه کړوه ئې منزل وکه یارانو
د پیرمای لاړی په حلق کښِ وچیدلی

18 کوجر خان پری د نیزی سر برابر که
د پیرمای پښتۍ ئې بغرکی وبیلی

19 پیرمای ئې له آس وغورزوه په زمکه
دیری زاری کوجر خان ته کولی

20 پیرمای وِ کوجر خانَ زه دِ پلاریم
دا خبری په ناپوهۍ کښِ ما کولی

21 کوجر خان وِ په سوکند پرِ به دِ نه ږدم
د پښتانه پیرۍ هم تا وشرمولی

22 ایرانی توره ئې وښکوه پری راکیښوه
د پیرمای هدوکی واړه دلول



IMPRIMERIE NATIONALE.

7 پیرمامی په زړه تنګ ورته ولاړ وه
د مرګ توق ئې له دوی سره کولی

8 بلومیرو په ژړا دواړه سترګی سری کړی
د غمو اوښی ئې په مخ را بهیدلی

9 کوجر خان په سفر تلی کورته راغی
د پټکی شملی په ولو زنګیدلی

10 کوجر خان له یو سړی نه تپوس وکه
د پاپاوی لښکری څنګه خوریدلی

11 هغه سړی وی کوجر خانَ پلار دِ ورکړه
پاپاوی له درخانی په بند بیولی

12 کوجر خان وِ پلار ہِر څه شه راته ښی
له صورته ہِر لنبی راوختلی

13 پیرمامی له یو دیوالَ پناه ولاړ وُه
دا خبری ئې پخپله واوریدلی

14 زر ئې آس ته ودنګل په مخ روان شه
له ډیری ویری نه خولی پری ماتی شولی

5 فقیر راغی دَ دریاب په غاړه پریوت

. . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . .

6 د دریاب کانړی واړه لعل جوهر شو
په اوښانو لیکدول په کوهو سهر شو

7 فقیر راغی په بادشاه وُوِ سلام
راوباسه شیرینی بِر شوهٔ انعام

8 بادشاه وِ چه شیرینی به درکړم تاله
دَ دریاب ته راوله قلاله

9 فقیر سر په زنګون کیخود حق حیران شه
زرغونی تر ښځی واغوستی روان شه

10 فقیر راغی دَ دریاب وکناری له
عالم واړه شه راجمع ننداری له

11 ګذارونه به ئی کول د غره په سر
تار په تار به زمکه تلله برابر

12 مخ کښِ فقیر وُه ورسپی خوړ دآبو شه

. . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . .

23 کوجر خان په نیلی سور شه راروان شه
د پیرمای غوښی کیدړو وخوړلی

24 برهان وائی کوجر خان پښتو پوره کړه
د آدم خان په نصیبه کښ وه لیکلی

## 46

### LE FAQIR ET LA PRINCESSE.

### GHAZAL DE MIR AFZAL.

### غزل د میر افضل

1 یو فقیر وه سیلانی نوم ئی فیاض وه
مولا ورکړی وله راج د هندستان وه

2 فقیر راغی په بادشاه وو سلام
. . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . .

3 . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . .
بادشاه سوال کوم که د سر امن وینه

4 و بادشاه چه شیرینی به درکوم تاله
اووه کوڅی دزرو ډک که راوړه ماله

21 شابه شابه شیرینی په زړه سنباله
چا پورته کړه سره د سلو کالو

22 میر افضله په دنیا کښ نشته یار
تش دخولی لباس کوی مکړه اعتبار

## 47

GHAZAL DE FATEH KHÂN.

## غزل د فتح خان زوی د اسلم خان امیر د قندهار

1 سحر صبا شه غریده نوبت سرنا
دمبدم په کښ دبکه شوه دقرنا

2 اسلم خان په زړه خوشحالَ شه
ئی شانه په بار بار به ئ ویله رب له ثنا

3 اسلم خان چه تخت ته وخوت ننداروته
تول بریسی وو په مثل د بریښنا

4 یو فتح شپیته بریسی ورسره وو
رونده شو د ښکار ځای ته شو پناه

5 تازیان سپی کته بازونه ورسره وو
پرنده ئ له هوا . . . . ناشنا

13 یوه بودۍ بادشاه له راغله مکرجنه
بادشاه خان سنبالدوه زه له وطنه

14 هغه فقیر له قهره راووست تول دریابه
درنګ ساعت له به دی ښهر کاندی غرقاب

15 دی بودی وی شیرینی جامی دِ ماوته بخشش که
..............................

16 ..............................
که خدای کاندی دا فقیر به مرکړم تاله

17 د شیرینی جامی ئی واخستی په ترخ کښې
دا راتله به ودریده د فقیر مخ کښې

18 دی وِ په چاری فقیر مخ دِ تور شه
شیرینی د بادشاه لور د حق په لور شه

19 هغه فقیر په خپل زړکی کښې شه کویانه
په عاشقی کښې خوانی مرګ لاړه دنیانه

20 چا خبر کړه شیرینی د حال احواله
په دو دو باندی راغله د فقیر خواله

14 دا د ښهر غزولی واړه خان له راغلی
خدای ته ګوره بادشاه بند خو وتړه

15 طر رخصت مونږ له راکه په دی درنګ
یا فتح کړم له وکړه د لاسه

16 ده فتح کړی په مونږه ظلم زور کړ
داسی نه کړی میرات خور په میراثه

17 اسلم خان وِ چه ځما خاصه وزیره
فتح پرېږده دا رعیت پر ونسه

18 وزیر وِی چه ګوره ای ملک سلطانَ
فکر نه کړی لر وبر لا یوماسه

19 ارسلا د وزیر پند خو داسی خوند که
لکه خوند کوی په خولی کښِ امرثه

## 48

### LA LÉGENDE DE JALÁD.

GHAZAL.

1 شیر زامن وو د خون کار د ګل په شان
نا مسلم تری تنی پری کړی وار په وار

6 فتح خان چه ښکار پوره په خپل یقین که
مازدکر په بیرته راغی دیوانه

7 د آبو په نیت روان شه جان کودر ته
په کودر د جیغو راغی مستانه

8 بوه جل ئې ولیده صاحب جماله د رابیه
په شان پرته وه فرښتانه

9 تور اوربل ئې د رابیه په شان اودلی
دواړه زلفې ئې خوری وی په شانه

10 فتح خان ورته وبل کرمه ورور دغه جل
که ېې پردی په څه بهانه

11 کری وی بیا منګی په کانړو وله په سرتور
به هم وبر که هم وینا

12 فتح خان چه منګی ویشت منګی سوری شه
د آبو لختی ئې سم شه په سینه

13 نور منګی ئې دغو بریسو کنډ کیر کړل
د فتح د ظلم کډه شوه کانه

10 د نا مسلم ښهر له چه ورغی یارانو
له یو سری تپوس وکه له سنیار

11 مامندی زرګر جلاد ولید په سترګو
مامندی ویل زه له تا شومه زار زار

12 جلاد حال دزره بیان کړ مامندی ته
خما شیر ورونړه مړه په ده دربار

13 صد رحمت په مامندی شه جیه کړَ
له جلاد سره ئې ښه وکړ مدار

## 49

### DIALOGUE DE JALÀD ET MAHBOUBA.

### I

بیګا دِ یمر وهلی محبوبا په کتارو
جارمَ په سترګو سرو
درته ناست یمَ پرکاله
بیګا دِ یمر وهلی محبوبا شومر زحمتی
اوس به کرزمر تومتی
که خاوند مِر مطلب سر کړی
نری نری فریاد کری خما زړه لکه طوطی

2 اوم جلاد زوئ پاتی شه په کور کښې
يوه ورځ ئې تعظيم وکړ د پلار

3 زه رخصت درځخه غواړمه پدره
دنړکي مې شنه لوګي خيږي له ناره

4 ده خون کار بادشاه ويل مه څه فرزنده
نا مسلم نه لري ترس په زړه کفاره

5 د شپږو غشي مې خوړلي دي په دل کښې
ستا په ديدن باندې په ما تيريږي وار

6 بيا جلاد وې زه به مړ کړمه خپل ځان
پس له دي مې بادشاهت نه دي په کار

7 چه خون کار بادشاه ژړا کړه له خپګانه
د غم اوښي تلي په مخ باندي انبار

8 مال دولت ئې وويشه په مسکينانو
صدق به ئې ورکولي لعل جوهار

9 چه جلاد شهزاده ووته له کوره
شپ وورځ کوه مزل په لويه لار

## III

ڪه دادا دِ نا مُسئِلِم دی زه یمِ خوی د خونکار
نو زړکی مِ دی پرهار
مدام خاخی تینه وینی
خوږلی ښامارانو یمِ زه پروت ستا په دلبار
چراو دی په ما زار
روغ به نشم ګل رنګینی
له درخودِ نه خمَ که مِ وسیزی په نار
نه مریږم په ګفتار
په مجلس د نازنینی
سترګی د ججنج خوله دِ تویک ډک له چرو
شین دِ خال نوبه ابرو
سپینه خوله دِ راکړه ماله
بیګا..................کاله

## IV

سترګی مِ ججنج خوله مِ تویک وکړه ترِ پام
چه را نشی په ماښام بندیوان به شی دَ ګور
په خپله مِ ښور کړی دی دَ تورو خمرو دام
چری ته به شی بدنام بل ستی به شی په اور
دا تاله مِ ساتلی نری جبه خوله اینام
بل درکوم به شامدام په تا وشه ظلم زور

شوم په سرو لنبوستی
په هر ځای کښ ښما شور وی
ستا دَ تورو سترګو په ما بیا راغله قاتی
چه دِ واغوست نباتی
شاه اوربل دِ په مخ ښور که
بی هوش لیونی شوم مدام ګرزم په میرو
شوم خوراك دَ امزرو
نری رنځ بِر شه ترکاله
بیکا................کاله

II

نری رنځ خو دِ زیاتیږی ځله ګرزی په بیابان
چری وبه کړی ارمان
راشه کښینه په پالنګ
له خیالَ بِر زنګیږی په سینه بانډِ زلفان
په جبین بانډِ مُهران
لګه ته بِر شوی ملنګ
پراته بِر په دلبار کښ ستا په شان ډیر ملنګان
ښه زلمی دَ قبرستان
دی ولاړ ښما په ځنګ کښ
دادا بِر نامُسلِم دی ورته کینه په زارو
عمر تیر که په خوارو
آخر دربه بِر کړی تاله
بیکا................کاله

چه ئې ولیده په سترګو بیګم جانه
د طوطي په شان عاشق شه په بلبله

2 نیمبولا په دام کښې بند شه سبب دا وُه
نابو کښې چه دَ ده وُه د سخو کوړ
د بنبو لختی ئې اوښی په شتاب وُه
هم یار هم ئې سکه خوی د تروور وُه
چه څه ورځې شولې تیرې دی بادشاه شه
خپلې خوابښی ته له سوختته کروکور وُه

3 چنغله بِړ که پالنګ وته روانه
راته وایه چه دِ چرته وُلیګله
نیمبولا په دام کښِې بند شه ناکمانه
نصیب راوست نابو هیله له کابله

4 بیا دې خوابښی و ویل نیمبولا زویه
درته وایم دا زړه بِړ چوی له ډیره غمه
هیځ په اصل باندې نه ده له تا لویه
خو ناپوه دَه په عقل نه ده سمه
وله لاړې وِ زه نه به یمه بې او یه
دربه نه شمه ضیا پس له صبحدمه

5 په تلو راتلو راتلو ئې ګوره زه کړمه ستومانه
ابووه کښې خورنګې ئې ودیدله

راغــلــی یمر وطــن لــه
مــســاپــر د جــزیــرو
ژونــدی بنــغ پــه ادیــرو
څــوك ئ نــشــتــه دی ئ لحــالــه
بیگا.......................کاله

۷

راغلی یمر دیــدن له مــساپــر دبــل وطــن
په مطلب ستا دَ دیدن بیلتانه یم کره ملا ماتــه
د ډیری فقیر بابا را ورسیــری پــه چُــشــتی
خما نه کیری رفتن وِ یمر دا سوال کومر وتاته
جیلئ راغی ستا له غمَ په ما وخت د ځن کدن
نه به روغ شمَ په جوند نه به خلاص شم له پساك
بادر شه قلندر بی پسی تــیــپ خــی دَ ســورو
شانی نشته د مِصرو نن بــه خــی دَ قــلا خــواله
بیکا...................کاله

## 50

### NÎMBÔLÂ.

#### GHAZAL DE NOURSHÂLÎ.

## چاربیته د نورشالی شاعر د اشناغر اوسیدونکی

۱ نیمبولا په دامر کښ بند شه نا گــمــانــه
نصیب راوست نابــوهــیــلــه له کابــلــه

نیمبولا په دام کښې بند شه ناګمانه
نصیب راوست نابوهیله له کابله

10 پس خبر شه د نیمبول هغه تربرو
د کابله وله راغی په شتاب
د بنده په خیر شه خان ئ کړ حضور
جوړه وه به ئ د ده د مرګ اسباب
په اسنبر کښې بو ملا دی معشهور
مړنی دی د پیریانو په قصاب

11 په تول کلی کښې پره شه یکهانه
خلقه به له بهادره خبروله
نیمبولا په دام کښې بند شه ناګمانه
نصیب راوست نابوهیله له کابله

12 پس خبر شه د هغې جینئ چنغول
د مُلا د راوستو شه طلبدار
وله لاړ شه وی دوتر بر واخله تول
د خدای په روی راسره پاځه په تلوار
مولا پاځید نوریئ هیڅ نه کړ تجمل
په دی کار کښې به راضی وُه پروردګار

13 چه روان شه دا مولا له خپل مکانه
له اوله پسته ژبه خوخوله

نیمبولا په دام کښې بند شه ناکمانه
نصیب راوست نابوهیله له کابله

6 ابوبله نیمبولا لاړ شه په قهر
دواړه سترګی برابر کړی خدای په ناوی
زړه ئی لاړ شه په ګوګل کښې تار په تار
دواړه شونډی د عشق په لنبو مړاوی
سپین سورت ئی لکه توکی د چو نتار
لا دمانی ئی په سنبال باندی لګیاوی

7 د نور شغلی ئی لاړ تر اسمانه
د ښایسته ئی سپوری وشرمیدله
نیمبولا په دام کښې بند شه ناکمانه
نصیب راوست نابوهیله له کابله

8 نیمبولا ورسره کښناست په پالنګ
دواړه لیچی له ورمیږه کړه چاپیره
چا وی پیریان دی چا وی ورکړه وله بنګ
څه بلا په دی جینئ شوله برسیره
واده خور شه غم ئی جوړ که په یو درنګ
بیښودی به پری راتلله دیره دیره

9 مُلایان ئی وله راوسته بی شانه
هر یو ویر ئی د مرګ ناره وهله

# 51

## LES PRODIGES DE LA MER.

### BALLADE D'AHMED.

## د احمد شاعر چاربیته

۱ لاندی تر آسمانه ولاړ ږی اوبو درياب دی
دوبیږی کل عالم په کښِ لیدلی مِړ دا باب دی
لاندی تر آسمانه دی لیکلی په صادق
پرته ده یوه کشته په درياب کښِ په تحقیق
په مینځ کښِ تری مهی دی دا پر ئی سره لکه عقیق
پښتئ دَ مرمرو دِی صورت ئی دَ تراب دَی
لیدلی مِړ دا باب دی

۲ لاندی تر آسمانه د مهی نوم کب سبیل دَی
بادشاه دَی د مهو حکم جاری دا ئی وکیل دَی
اوبه نه وِینی بند په یوی کشته کښِ اِسیر دَی
ثنا وائی د رب په ښه ادب پټ په حجاب دَی
لیدلی مِړ دا باب دی

3 لاندی تر آسمانه دواړه سترکی ئی له اوره
شا کړده غوږ پری کیږده د الله حکم ته کوره
سینه ئی د سوچو دَ لاجبرو تکه توره
تری بوئیږ شی دَ عنبرو پاك الله ورکړی آب دَی
لیدلی مِړ دا باب دی

نیمبولا په دام کښې بند شه ناکمانه
نصیب راوست نابوهیله له کابله

14 اول وُو په منت خما له مخې شه په خنګ
زه چه لاړشم له دی ځایه په حکمت
چه عالمو ته پر مخ نه شی بدرنګ
نیمبولا وی خمونړ نه دی دا عادت
خمونړ لوز دغهسی پوخ دی لکه سنګ

15 دروغجن به شم له پاکه مهربانه
کلیمه پر په دروغه نه ویله
نیمبولا په دام کښې بند شه ناکمانه
نصیب راوست نابوهیله له کابله

16 بیا مُلا ورته ویل شه په سنبال کښې
که نه زه دِ بنده وم په دایره کښې
کوره چرې خطا نه شی قیل و قال کښې
بیا به نه وِی ستا نصیب په دی بشره کښې
نیمبول وی چه مونړ پاخه یو په اقبال کښې
منترونه دِ لیکه په سیپاره کښې

17 چه مذکور سره جوړ که جالوانه
بناپیریٔ خوبندی راغلی یو تر بله
نیمبولا په دام کښې بند شه ناکمانه
نصیب راوست نابوهیله له کابله

# QUATRIÈME PARTIE.

## CHANSONS D'AMOUR.

---

### 52

GHAZAL D'ALI KHÂN.

1 خوب وینم عالمِ چه هر څوك راكئ مانه
سر ږِ دِ په غیږ كښ د جانان په زنګانه يامولا
2 خال دِ دی دوری زنان پروت ئ پاچای كه
لښكر ئ پر چاپیر كه لكه مار په خزانه
3 ماله خپل یار سره مهر و محبت كه يامولا
بیل كړم غازان یار له ما شو بیګانه
4 راشه خان محبوبه سره مهرو محبت كه يامولا
زلفان په مخ ښوری پر چه سپین مخ ئ كه شانه
5 راشه علیخانَ خان په یار پسی ملنګ كه
ښه شوی چه ملنګ شوی په آخره زمانه

4 لاندی تر آسمانه د مهی په خوله کښِ لال دَی
پیروی تربنه زیږی دا خوراك دده بوحال دَی
• دَ ژبی ئې لس سره دی هریو ډك په کمال دَی
خاوند په خپل قدرت سره ورکړی دا خطاب دَی
لیدلی مِړ دا باب دی

5 لاندی تر آسمانه په یو باب کښِ دا صیغه دَه
کتاب دَی د ابجد و قصه لیك په کښِ دغه دَه
وهم پری رافضیان چه بس خما توره تیره دَه
احمد وائی کوم کیدی خما د شعر جواب دَی
لیدلی مِړ دا باب دی

3 د زلفو جال مِ د سرو شونډو په سر يوخ يښي دي
لړوم اور خال مِ تور په جبين شوخ يښي دي
سر مِ له غمه د مين لالي په رخ يښي دي
د يلو تهمت ما په تندي د پاڅه د زوق يښي دي
ښما په زړه بري راښي کاغذ ملا ښځه دي
تيره بيلتون ښما د څوک زړکي قلاڅه دي
د مرده خولي نه الفاظونه دَ آزار څله ښي
چه راوستو له مِ په يار پسي ربيار چڅله ښي

4 زه به نيمګړي عمر چاته په هيواد کومه
د بُنير رنده نوکري به دِ اولاد کومه
خاونده ستا په نيازولو به فرياد کومه
د پرديسي امانت قدر خير الله ښځه دي
تيره بيلتون ښما د څوک زړکي قلاڅه دي
اوس له وطنَ به زړه وروله مليار څله ښي
چه راوستو له مِ په يار پسي ربيار څله ښي

## 54

### CHANSON D'ARSAL.

1 په تورو ښنړو وله لاړم ننواتي
يار مِ دکن له ته بخپله مِ که پاتي
په تورو ښنړو
په تورو ښنړورته ودريدم سرتوره
ورته مِ ونيوه جولئ چه دي ته کوره

# 53

## BALLADE D'IMÂNAT.

## چاربیته دَ امانت ملیار شاعر د مینی اوسیدونکی

1 تیره بیلتون خما د خوک زړکی قلا څخه دی
چه راوستو له مې د یار پسی ربیار څله څی
ما په ربیار وکه اعتبار څکه مې ځان ونه لید
شیرین صورت مې په کلرنکی یو زمان ونه لید
شرکی خال مې الوول په زنخدان ونه لید
د کریدو مې سریکار جوند مې د ځان ونه لید
زړه مې بند شوی نن له هغی توری بلا څخه دی
تیره بیلتون خما د خوک زړکی قلا څخه دی
چه له سینی نه ئی بویونه د بلغار څله څی
چه راوستو له مې د یار پسی ربیار څله څی

2 زه په نارو کړی شوم خارو ته په سهیلو کښی ګرزی
دماغ د زبات دی د مرمرو په قلعو کښی ګرزی
شولی سرداره د خوبانو رسالو کښی ګرزی
خماله قصدً په زرینو دوشالو کښی ګرزی
وکه اعتبار ربنی مې سر ستا پلار شیلا څخه دی
تیره بیلتون خما دَ خوک زړکی قلا څخه دی
طبیب زه یمه نو دارو لره بیمار څله څی
چه راوستو له مې په یار پسی ربیار څله څی

5 سپين مخ د چراغ ښما زړه شه په داغ
ما نيولى دلبار ستا په وقت د سحر
6 چه عاشق دى بهرام ستا صفت ئى کلام
په سلام دى مدام که ته وکړى سلام

## 56

### GHAZAL DE BAR ÂMAD.

### غزل بر آمد

1 د سپينى خولى دِ شم قربان والله
پورته کړه چشمان والله
2 سر له پالنګ کړه را پورته
درته ولاړ دى عاشقان والله
پورته کړه چشمان
3 مخ دِ آفتاب دَ مهتاب په شان بليږى
بل دِ په پوزه سور پيزوان والله
پورته کړه چشمان
4 ښما دلبر شمس وقمر
په مخ راپريږده تور زلفان والله
پورته کړه چشمان
5 په ښنکدن خپل جانان راته حضور کړى
چه راته وايِ مناجات والله
پورته کړه چشمان

سوال مې قبول کړه
درته وايم په زور
پکار مې نه ئې که نواب په ازربات يې
په تورو شنړو وله لاړم ننواتي
يار مې دکې له . . .

۵ دې ورته ويل خما خبرې مرغلرې درمرجان دې
تانه په ورستو پاتې څه په هندوستان دې
بنه ارسلا وايه دَ څنې سر کښې مې روبان دې
دغنئ سر به درکوم مصري نابات
په تورو شنړو

# 55

GHAZAL DE BAHRÂM.

## غزل د بهرام

1 معمور نه شوم زه په وصال د دلبر
شوکيرې کرمه مدام پسې زه شمه اوتر
۵ سپين مخ دِ گلذار تورې زلف دِ سنبل
مرورید دِ دندان دواړه لب دې سره زر
3 ستا مقام دې په ښهر خبردار شه ښارو
زه مين په تا ډير که ته وکړې باور
4 سپين مخ دِ آئين زنخدان دې کعبين
تول صورت دې سپين تجلي کا د نمر

4 په دیدن پسی دِ زه راتمه
چرته وی چرته زه راغلمه له کومه
باځه غم د آخرت کوه دوستمه
آخر به روان شی د دنیا ښکلی بازار وای بیا

## 58

BALLADE DU MÊME.

### بله چاربیته د دوستم

1 نن جواب رابسی بیا د صنم راغی
که مِر بولی په رښتیا چه اختر راغی
اختر د هغه عالم کاندی صنمه
چه قلاری په خپل کور ناست وِی بیغمه
زه به هغه ورځ خلاص شم ستاله غمه
که دِ ماله له مابنرِه خبر راغی

2 په مابنرِ کښِ د یوسف چغر د سوری وی
هغه یار دِ په یوسف مندنرِ کښِ کوری
دواره زلفی که خیرات د خدای په لوری
پردیسی په زرِه سوری قلندر راغی

3 پردیسی دِ په دلبار وهم چغاری
آخر خان به کرمه ربگ دلوی لاری

6 زه بر آمد چه رنځور پروت يم کرېږم
که يو ځل راشي خپل جانان والله
پوښته کړه چشمان

## 57

BALLADE DE DÔSTAM.

## چاربيته د دوستم شاعر

1 پټ د که صنمه سپين رخسار واي بيا
دغه نمر دِ په دوستم که نيزه‌وار واي بيا
دغه نور دِ نيزه‌وار که په ما باندي
آسمان زمکه دِ په ما کړه لاندِ باندي
طبيبان کله دارو د رنځور کاندي
چه وبشتلي وِي د چشمو په ګذار واي بيا

2 يو ګذار راباندي وکړه دريغه دريغه
اندرون زړکي ېر غوڅ شه پِ له تيغه
ستاله غونو نه به کله هم فارغه
که يو غږ راباندِ تا وکړي دوبار واي بيا

3 يو غږ راباندي تا وکړي جانانه
هدو بل مېن ېر نشته پِ له تانه
په ديدن پسي دِ ژاړم يک ځانه
په دلبار دِ وړي پروت يم دِ ديدار واي بيا

دا جای د په تهمت واړه زیږی که
له خاطره یې هوسئ د عقل لاړه راځه

2 له خاطره یې هوسئ د عقل تلی دَه
ستا په پوزه یې د سرو پیشئ لیدلی دَه
غرغره یې لړمانه کښې لکېدلی دَه
په کالو که خان سنبال محبوبې واړه راځه

3 په کالو چه خان سنبال کړی زینتناکه شی
ته له نورو جینو زیاته ښیوه‌ناکه شی
د عاشقو لړمانه له قصابه شی
چه برجل لره راځی لمنی نغاړه راځه

4 چه برجل لره راځی عالم خبر که ته
په زلفانو ورته پوری مشک عنبر که ته
یو خل خو په مجمر خان برابر که ته
چه موزیانو کړه بند شوی جاړه جاړه راځه
نن خما دپاره ته حیل په غاړه راځه
له هوسَ غورز وَه لستونړی دواړه راځه

خپل سر به کړمه ستا په یو کښ خاوری
لکه اور له پتنګه سوی خیګر راغی

•

4 دغه سوی خیګر پروت یمر ستا د ورانده ،
طبیبان کله دارو درنځور کاندی
اوس خوره وره رالګه په یار باندی
نن دِ مهر محبت په چا برابر راغی

•

5 مهر محبت بِر په رانږی وایه صورته
.........................
نه توبه که د صواتی له بادشاهنه
یار له تلی وه بخلا مرور راغی

# 59

## BALLADE D'AJAM.

## چاربیته د عجم شاعرچه له ذاته دوبی او اوسیدونکی د بنیرؤه

1 نن خما دیاره ته جمیل په غاره راشه
له هوسَ غورزوه لستونړی دواړه راشه
نن خما دپاره ته زلفانی غوړی که
د موزر سره په هر زمان جګړی که

یا دی طاوس بنړی یا ستا زلفی شان شان
یا خوند کښ عنگبین دی یا ستا خوله مربا دَه

5 یا باغ د زیړو گلو یا ستا ښکلی کاکل دی
یا شور وکه بلبلو یا زړه د جمید گل دی
یا تیغ دَ یساولو یا ستا خونی چارگل دی
یا دا مارغه رزین دی یا هغه محبوبا دَه

# 61

## GHAZAL D'ÎSÂ AKHOUN ZÂDA.

## غزل د عیسی اخون زاده

۱ زه یم خوار وزار ستا په دلبار پروت یم فقیر
ښما یاره رب د پاره لږ څه کړه په ما نظیر

۲ در ته وایم دزړه حال    ستا په خیال کښِ شوم حلال
ښکه پروت یم بی مجال    چه ستا چشمانو که تاثیر

3 زه طوطی کومه شور    ﷺ روز ستا په کور
ته ښما نه کوی غور    ښکه ژارمه دلگیر

4 اول تاچه کړه خندا    ښما ښکه شوه سودا
اوس له ما کړزی جدا    له مانه څه وشه تقصیر

5 تا کړی زلفی ول په ول    زه دِ بند کړمه په چل
اوس ښما راغی اجل    کړم د خلاصی زه څه تدبیر

6 ای ظالمی ظلم مه کړه    ما سره خبری وکړه
ته ښما زړه نه غم وروك کړه    زه غمجن یم کثیر

## 60

### BALLADE DE HAMÎD GOUL.

## چاربيته د حميدگل شاعر د پلوسو اوسيدونكى چه خورى د عبد الرحمن وُه

۱ يا تيك ستا په جبين دَى يا ستركه د صباح دَه
يا جام د چين ماچين دَى يا سپين خوله زيبا دَه
يا عطر د گلابو يا ستا د مخ خولى
يا تورى د پولادو يا ستركى د ليلى
يا كيف دَى د شرابو يا بنگ د بنگالى
يا حجر تحترين دى ياتبه يا وبا دَه

۲ يا ستا خورى خبرى يا خوند د شمرقند دَى
يا دى د سپاهيانو زغرى يا ستا د اوربل بند دَى
يا ستا قميص گلكين دى يا د وزير قبا دَه

3 يا مياشت دَ بينخلسمى يا ستا جبين روخان
يا عرش لاندى كرسى يا ستا زرين دالان
يا ستا دلاس ترسى يا تخت د سليمان
يا بوته لرزين دى يا د موسى امسا دَه

4 يا ستا ستركى رنړى يا ستورى د آسمان
يا د كابل منړى يا ستا سپين زنخدان

# 63

GHAZAL DU MÊME.

## غزل د عیسی اخون زاده

1 ستا له فرقته مې نن اوښی سیلاب ډینه
راشه ته گوره چه جامی مې غرقاب ډینه
2 ستا د مینی اور صنم په ما ډی کړی نور صنم
غوښی مې شوی تورِ صنم لکه کباب ډینه
3 عاشقان ټول صنمه واوره فریاد کړینه
داخو ژوندی عالمه په مړو حساب ډینه
4 څوك په رښتیا عاشقان کړم د هغو زه بیان
دَ دوی دپاره جانان گوری قصاب ډینه
5 دَ دی زمان دلبری دی په جفا مشهوری
لکه د کنرِ مطرِ خلقه حباب ډینه
6 زه عیسی څکه رنځور یمه په زړه باندی چور
سترگی دیار مې صرور لکه آفتاب ډینه

7 عیسی گله اوس ضرور یار له تا کرزی مغرور
بی وفا کړلی رنځور ستا به وی دا رنګ تقدیر

## 62

### GHAZAL DU MÊME.

### غزل د عیسی اخون زاده

1 زه شوم اسیر ستا په زلفان
رب دپاره واړوه چشمان
2 خما خواب واوره صواب
ولی پرسیزی په نیران
3 کوم چغار ستا په دلبار
وکړه ته نظر په عاجزان
4 نظر خما نه شته په تا
مه کړه د وفا په ما گمان
5 زه عیسی گل شومه زهیر
ربه خه به وکړم تدبیر د خیل جانان

پس به شو داسی دوارِه مونږه اسیر
د رب دپاره صنم وکړه نظیر
ای د شال میرمنی مکړه رټل
د رب دپاره صنم وکړه نظیر.

3 واوره دلبری خما کوم سوګند
ستا د مینی په دام کښِ شوم زه بند
که وارِه خلق راسره کوی اوس جنګ
ستا له خیاله نه به نه شم په څنګ
مرګ د چا نشته جینۍ بی دَ اجلَ
ای دَ شال میرمنی مکړه رټل
که دښمنان را باندی راشی کثیر
د رب دپاره صنم بیا وکړه نظیر

4 هکله زور لرم د سکندر
بیا ارمان به وکړی نن شه خبر
د زنبورو توپو لوی غرهار
رسالو راپسی خیژی لښکر
له عبادت نه غافل دَی عیسی ګل
ای دَ شال میرمنی مکړه رټل
ته د عذاب په عیسی مکړه تاثیر
د رب دپاره صنم بیا وکړه نظیر
ای دَ شال میرمنی مکړه رټل
د رب دپاره صنم بیا وکړه نظیر


IMPRIMERIE NATIONALE.

## 64

GHAZAL DU MÊME.

### غزل د عیسی اخون زاده

1 ای د شال میرمنی مکړه رټل
د رب دپاره صنم بیا وکړه نظیر
ای د شال میرمنی وایم یو حال
دواړه غوږ پری کیږده پهِ مقال
ستا په یاری کښِ صنم شوم بی مجال
د رب دپاره دارو راکړه فی الحال
ژوندون مِ گران شهٔ نرئ ته کوی سول
ای د شال میرمنی مکړه رټل
ځکه غنچن ستا په در پروت یم فقیر
د رب دپاره صنم وکړه نظیر
ای د شال میرمنی مکړه رټل
د رب دپاره صنم وکړه نظیر

2 په دواړه لاسو ورته کوم سلام
پس له سلامه واوره دغه کلام
څمونږ په مینی خلق خبر تمام
نن صبا کښِ گوره شو به بدنام
هوښیاری زر له دینه راشه یو ځل
ای د شال میرمنی مکړه رټل

# 66

## GHAZAL DE MÎRÂ.

## غزل د میرا

۱ چه ستا غمر له ما چاپیر شه    الغیاث فراق ږ دیر شه
زړه ږ وسه ستا په مینه    نه خلاصیږم له لعینه
په غوبل کښې ږ تن ګیر شه

۲ اندرون زړه ږ کباب شه    تمامی ژوند ږ خراب شه
چه په تن آشنا ږ هیر شه

3 لکه ګل یمر په بهار کښې    مدامر خوبښ یم په انګار کښې
زړه طوطی په قفس ګیر شه

4 بوه ورځ به هسی راشی    په عالم کښې به غوغا شی
چه میرا له دنیا تیر شه

# 65

## GHAZAL DE MAJÎD SHÂH.

1 سخته په ما ده خدایه له ما جدا دلبر شه
د تورو خاورو لاندی هغه شیرین بشر شه
2 رنګ مې تک تور که هجران ونیوه آشنا کورستان
ؤمې لیدی خپل جانان جوړ به په ما اختر شه
3 اختر که هغه عالم چه په زړه نه لری غم
خاځی له سترګو مې نم غوڅ مې په کښې خیګر شه
4 غوڅ په کښې خیګر دی جاړم شپه ورځ مې ویر دی
په ما همیشه شوګیر دی خښ مې په زړه خنجر شه
5 زړګی خما شه افګار په قد قامت کښې د یار
هیڅوک مې نه شو پکار غم مې ګل هم په سر شه
6 غم مې په سر شه هر لور مقصود مې ونشه نور
په کښې ګلونه سمسور مړاوی باغ صدر شه
7 صدرئ باغ دی شیرین جامی ئې واړه زرین
مجید شاه ګرزی غمګین نن ئې دیار سفر شه
8 زه مجید شاه یم غلام ورته خما دی سلام
خما به وکاندی کام که د لوی پیر نظر شه

2 سترګی بینا که په لارسم شه
غلیم ته شا که ورنه په خنک شه
حرص ډیر دی څوتر کم شه
چشمان درون که په خپل ګریوان کښی

3 خپل چه دِ یوسی هلته د پرپرډی
ښه دِ سنبال که بیا درنه لیږدی
درته به راشی له قهر ریږدی
مولا دِ مل شه په بیابانی کښی

4 له تا قربان شم ښما دلبره
پیشوا مِ ته بی پاک سروره
خون مِ جدا شه د زړه له سره
مکان دِ نشته زمین آسمان کښی

5 مرګ دِ په سر دی میرا فقیرا
شتی به وخوری په زړه تا و ریرا
آخر به لاړشی له دی جاړیرا
غشی نیولی درته کمان کښی

# 69

## GHAZAL DU MÊME.

## غزل د میرا

1 په فراق مِ سترګی شوی بد ستیٔ د کرمِ په اور
همیشه یم ستا په غم کښی زړه مِ وسه سکور

## 67

GHAZAL DU MÊME.

### غزل د میرا

1 چه راشی خزان بیا تالا کا باغچی
بلبلان شو خندان په دیدن د غنچی
2 تیربیږی دنیا هیڅ مدار په کښی نشته
مخلوق شه بندی د زمین په تاڅی
3 راروان دی طوطی په ژړا له دی باغ
زخمی شه په زړه د هجران په برچی
4 یو نظر ورته وکړه صان جنګ دی مدام
فریاد که زلمی چه ورځی په مورچی
5 میرا دی فقیر ګناه ګار دی دا ستا
آخر به شی پاتی د دنیا له چرچی

## 68

GHAZAL DU MÊME.

### غزل د میرا

1 طوطیان فنا شول لاړل ارمان کښی
سترګی یې نمر که په هر زمان کښی

VERSION B.

1 زره مې یوور په منګل کښې جنې راغلـه خـارو
زخمی په غم کښې ناست یم د هجران په کتـارو

2 خنه ثمر لری شونډی شکر لری خما دلبر لـری
زه ئې وهلی په ضمیر خکه ګډ یم په نـارو

3 تل په جنګ یم په وینو رنګ یم په ژوند کښې تنګ یم
یار دِ طبیب شي خما پروت یم په طمع د دارو

4 وکړه پام په ما شام مدام په ما
در ته پروت یم په درګا کښې مقدم یم د سوارو

5 میرا غلام دی ستا پری سلام دی ستا
زلفی دام دی ستا جنت مقام دی ستا غاز ګیر کړه په پنجرو

6 چه خوک شعر وایی وزن دبل وایی
خان ته د غل واېي چه خوک غزل واېي دا خبره ده بې رو

VERSION C.

## د با جی غزل

1 زخمی په غم کښې ناست یم د هجران په کتـارو - رو - رو
زره مې یوړ په منګل کښې چه نن راغلـه بنـارو - رو - رو

2 لب شکر لری غاښ ګوهر لری خنه ثمر لری خما دلبر لـری
زه ئې وهلی په ضمیر خکه ګډیم په نارو - رو - رو

3 لازم سلام په ما شا مدام په ما وکړه پام په ما غر مقام په ما
درته پروت یم په درګاه مقدم یم د سورو - رو - رو

2 خان نژدی باسه مکخته که پوهیږی وقت دِ دا دی
دغه واړه به برهم شی که دِ پلار وِی که دِ مور
3 عاشقان خوبه په دار وی که مین وی په رښتیا
د ښائیست ثانی دی نشته بل خالونه د خلمور
4 گناهونه لکه غرونه د میرا فقیر په سر دی
جانانِ نی وی که صبا وی بیا به شی بندی د گور

## 70

GHAZAL DU MÊME.

## غزل د میرا

VERSION A.

1 زخمی په غم کښِ ناست یم د هجران په کتارو
زړه مِ یوړ په منگل کښِ چه نن راغله خارو رو

2 تل په جنگ یمه په وِینو رنگ یمه زه د ملنگ یمه
په ژوند کښِ تنگ یمه یار طبیب دی خما زه په طمع د دارو رو

3 سینه ثمر لری لبان شکر لرِی دندان گوهر لرِی
خما دلبر لری زه ئی ویشتلی په ضمیر خکه گډ یم په نارو رو

4 لازم سلام په ما ته وکړه فهم په ما جانان مدام په ما
صبح وشام په درته پروت یم په درگاه مقرر یم د سورو رو

5 شعر د خپل وایِ وزن دَبل وایِ خان ته دِ غزل وایِ
چه خوك غزل وایِ میرا وایه ثنا تل نماز گیر کړه په پنجرو رو

3 میر فریاد کړی پروت دی رنځور
پری مقرر شه د غم یاسور
وَقت د هم دا دی وکړه تلوار
عاشق سوال کړ دی د خپل یار
په دردِ پروت یم په زړه افګار

## 72

GHAZAL DE MÎR ABDALLAH.

### غزل د میر عبد الله

1 دوب شوم زه ستا په مینه غم د هجران دی نه
په مخ یې اوښي څي نه لوند یې ګریوان دی نه
2 ستا په سودا شوم مجنون روان له زړه نه یې خون
دِ راپسی دی بیلتون عمر یې ګران دی نه
3 پتنګ د عشق له جوش پروت دی سرګوم یې هوش
غوښه ئې په اور کښِ توی شوه تخت ئې ګذران دی نه
4 میر عبد الله شه ایسار ستا دَ وصال طمع دار
شه په عذاب ګرفتار هئ هئ ارمان دی نه

## 73

GHAZAL DE MIYÂN RAJAB.

### غزل د میان رجب

1 نن دِ زخمی کړی د ضمیر په کنارو یم
خکه په نارو یم

4 بنه بشر د ستا چشم بر د ستا پسی پرد ستا خلق خبر د ستا
در ته پروت یم په دربار امیدوار یم د دارو - رو - رو

•

5 شعر چه خپل وایی وزن دپل وایی څان ته د غل وایی
چه څوك غزل وایی میرا وایه شنا تل څازکیر کړه په پنجرو.رو.رو

• •

71

•

GHAZAL DU MÊME.

## غزل د میرا

1 عاشق سوالگر دی د خپل یار
په درد پروت یم په زړه افکار
خیر له ورتمه هر څه مې هیر شو
څسا په لاس کښی سپی راچاپیر شو
په لاس رانه ځي د زلفو تار
عاشق سوالگر دی د خپل یار
په درد پروت یم په زړه افکار

2 څراغ بلیږی څان کړه پتنګ
څانځ ورشه مکړه تری څنګ
تری نه جدا که د گلو هار
مین په تا یمه شومه حصار
څکه بندی شومه زه په سنګسار
عبث مې تیر که د څوانی وار عاشق سوالگر

2 پروت یم پدرگاه ملنگ
څکم مدام د مینی بنگ
زه دِ مینې یار یار یار    گرزم ستا په ننگ

3 دو بِر په تا سر ومال
تا ته بِر معلوم دی حال
ستا حسن بازار زار زار    دی په عالم

4 میان رجب گدا یم
دیر په تا شیدا یم
پروت یم پدریار یار یار    په صبحدم

## 75

GHAZAL DU MÊME.

## غزل د رجب

1 شینکی خالونه دِ په مخ مخ کړه زرافشان
بې اور سیځې لیلی ولی ولی عاشقان
2 ابرو لیندې ما لیدې بانړه د غشې
عاشقان وژنې چه پر را کاږې کمان
3 مخ د گلرنگ چه په هر درنگ تجلی کا
تِرې لاندې خانگې په سرو شونډو شونډو سور پیزوان

2 سا ږ شه بیرون صنم ستا په عاشقی کښې
بی گناه وهلی د زه په نیغو کتارو یم
شکه په نارو یم

3 حسن خال و خط لری شه عجب زینت لری
تحفه دَه یاری کوم زاری په شوکیرو یم
شکه په نارو یم

4 حسن د لیلی لری غږ دِ په عالم کښې
زه لکه مجنون درپسی گرزم په میرو یم
شکه په نارو یم

5 هرڅوك چه آشنای کوی مدام په غم کښې
زه رجب رټلی د بی نیازو سترکو سرو یم
شکه په نارو یم

## 74

GHAZAL DU MÊME.

## غزل د میان رجب

1 حسن خال وخط لری
شه عجب زینت لری
خال دِ پرخسار سار خال د مقدم

3 ډیر راته قهربېزی وری رب به مې ساقی کـنـه
ته راته اوس سم که دَ اوږدو زلفو لختی کنه
سپینه خوله دِ راکړه مور مې که لکه طوطی کنه
یو خله مې کړه که په انبار دَ تورو زلفو بیګا مِ

4 تا به کرمه داخل زه یاره د سپینی سینی باغ کښِ
ته به شی یاغی له ما به ګرزی په دماغ کښِ
سپین مخ چه ښکاره کړم رنړا وروکه شی چراغ کښِ
ربه لاله راکړی ښه سنګار د تورو زلفو بیګا مِ

5 رب د له درکړی دی ډیر حسن بې شماره
نظر وکړه نیازبینی هم بهی نوکر ی تمهارا
پرون په صبحدم درته لیږلی وه ریباره
په زړه باندی چیچلی یم ښامار د تورو زلفو بیګا مِ

6 ښامار له به زه دم کړم وروکیهَ هودیداره یم
مګر زه زهیر کمبخته ستا په پت کښِ پاره یم
زه چه خو پکلی نه زه موزی نه او یزاره یم
ما تول دله درکړی ښه اختیار د تورو زلفو

7 اختیار د محمد دی د پکلی په شاعرانو کښِ
قلنګ ئې که جاری اوس د ډیلی په امیرانو کښِ
ملک ئې که رعیت چلوی په بار د تورو زلفو
بیګا مې دی سیل کړی په بازار د تورو زلفو
زه که لکه بورا شوم په بازار د تورو زلفو

4 زلفی د توری بیا سمسوری تار په تار کړی
په بیرته نه کوری چه یار دی یار دی په لرزان

5 د یار بیلتون اندرون زړه مِر سوری شه
د میاں رجب د خلی نه خرشیری دُرِّ مرجان

## 76

BALLADE DE MUHAMMADJI.

### چاربیته د محمدجی

1 بیکا مِر دی سیل کړی په بازار د تورو زلفو
زه کڅ لکه بورا شومر په بازار د تورو زلفو
بیکا مِر دی سیل کړی ستا د زلفو باغچه کښِ
کڅ لکه بورا شومر د انارو په چرچه کښِ
خښ مِر کړل غابښونه د نرئ زنی سوچه کښِ
بل بوی مِر کړ د شاه د غاړی هار د تورو زلفو
بیکا مِر دی سیل کړی په بازار د تورو زلفو
زه کڅ لکه بورا شومر په بازار د تورو زلفو

2 چه هار د خما بوی که یاره ته پری مست بنگی شولی
اوده لکه بهرامر د سراسیا په پلنگ شولی
اخر به دِ خوك مرکړی غل خما په اننگی شولی
اوس دیر درته تهربری خوکیدار د تورو زلفو بیکا مِ

چه کور ته راشي خپلي مور ته په ژړل ولړي
اور مې په کوکل ولړي

4 چه کور ته راشي مور ته وايي څما رنګين نشته دی
بل څما آئين نشته دی
بناتئ کوښي بل کالي بل مې کلکين نشته دی
بل مې خال مهين نشته دی
اوبو له څم راسره پيغلي په خندل ولړي
اور مې په کوکل ولړي

5 موري وُولورِ چه نرسيري لاس څمونږه
زړه دَی په وسواس څمونږه
چه فصل راشي رب به قرض کاندي خلاص څمونږه
پس کوره لباس څمونږه
تا به سنبال کړم که روپئ مې په تا سل ولړي
اور مې په کوکل ولړي

6 دی لورئ وُوِ چه بيا تاسره خواري نه کوم
ستا زميندارى نه کوم
يو ساعت به په ځان تير کړم بې ياري نه کوم
تش دول په سلاري نه کوم
محمدق ژاړي چه د يار په روان برجل ولړي
اور مې په کوکل ولړي

7 محمدق وايي دا شاعران جمعٔ هزار شينه
تولوته مې قهر شينه

# 77

BALLADE DU MÊME.

## چاربیته د محمد جی

1 چه مازدیګرشی شاه د ښان په جوړه‌ول ولړی
اور مړ په ګوګل ولړی
چه مازدیګر شی شاه په غاړه ښه حمیل کاندی
تول د جینو سیل کاندی
په ښځلی وربل لګیاوی تور فلیل کاندی
زړه خما غلبیل کاندی
دګل غنچه شی تګه زانړی په کابل ولړی
اور مړ په ګوګل ولړی

2 دګل غنچه شی چه دا سور سالو په سر کاندی
بریښ تګه د نور کاندی
دلاله وګرزی دا ښی جینی خبر کاندی
ښان سره لښکر کاندی
دګل دسته شی چه آشنا په ګرُول ولړی
اور مړ په ګوګل ولړی

3 ګُدرله ورشی چه یوبل سره خبری کاندی
په اوبو وتر دَ اوږدو زلفو اکدری کاندی
پس له هغه سندری کاندی

# 79

## GHAZAL DE MOHAMMEDIN TILAI.

## غزل د محمدین تیلی

1 راپورته که چشمان دلبرَ ژاړي په سپترکو سرو
په زړه یمه خوړلی ناخبره ستا زلفو منکارو
2 ستا د دریمه درویش درته پروت یمه همیش
سره لبان کړه راته پیښ شهد وشکر په شان د چوهاړو
3 دله دربه کړم انعام د سرو لبانو جام
ما قبول کړه ستا سلام ګل صدبره زه یم ستا ښارو
4 سره لبان دِ راکړه ماله ای خما د زړه دستماله
سحر وقتی چه خمه د له دره طوطی په چغارو
5 ستا د زلفو په زنځیر بې ګناه شمه اسیر
زه فقیر ستا د دربار شمس وقمر غوړ یم وکړه دارو
6 محمدینه جدائ سړی دېر که سودائ
تیلی که کدای په لوی سحر سیل که دمنجرو

خـمـا عـل دِ دیـوانـه غـازی سـردار شـیـنـه
تول به تار په تار شـیـنـه
دامی به تبتی جور لیوکان چه په خنگل ولـړی
اور بر په کوکـل ولـړی

# 78

## GHAZAL DE MUHAMMAD-DÎN.

## غزل د محمدین

1 سـر بر شـه له تا قـربان
خما جانانَ پورته که چـشـمـان
2 د یار په غم کښې سترگی په نمر کښې
پری باندی لـونـد شـه گـریـوان
3 گریوان بر لوند دی په زړه بر دوند دی
په مخ را پرېږده تـور زلـفـان
4 زلفانو نوش کړم دیر ئې بی هوش کړم
جانانَ راکـړه سـره لـبـان
5 لب د غنچی دی خـنـگـه چرچی دی
پر باندی خانگی سور پـیـزوان
6 له محمدینه نشته ستامـیـنـه
تـکـئ د وکـړله جـانـان

5 دله درخمه زه مرید د دستگیر یمه بند د په زنځیر یمه
په زړه بر خښ دی دَ یارئ غشی تاوګیر یمه
وُدی سوم فقیریمه دا نری ښپه پرده د نیلی په رکابونه
زلفِ دِ تالونه

6 په سری پیشئ کښ د اصیلی مرغلری
ما لیدی له لری د محمدین په زړه بلیږی اور دسری راشه قلندری
تیلی ولاړ دی مخ څرګند کبه له شالونه
زلفِ دِ تالونه

# 81

## GHAZAL DU MÊME.

## غزل د محمدین

1 راشه خارو ماوِ راشه خارو
طوطیان که ګریان هر زمان په نارو
راشه خارو

2 زه یم ښا پیرئ لرم خیال د یاری
سره لبان سری اورئ خوند زیات که له مصرو
راشه خارو

3 توری زلفی د سنبل بله غاړه د غندل
سپین مخ لری ګل شین د خال په ابرو
راشه خارو

# 80

BALLADE DU MÊME.

## د محمدين چاربيته

1 په تور وربل دِ قطار کړی دی کلونه زلفِ دِ تالونه
په سپين جبين کښِ دِ خالونه دری څلور دِی ما ايښی په زور دی
دَ ښايست کوکی دِ خوری تر لاهورَ دی شنډی دِ دَمور دی
په سری پيشئ کښِ دِ جوری ايښی لعلونه زلفِ دِ تالونه

2 په سری پيشئ کښِ دِ جورئ ايښی دی لعل مرمه بد بِر حال
چه ناګهانه راښکاره شوی په ديوال په زنخ دِ خال
و معشوقو ته چا نيولی دی ډالونه
زلفِ دِ تالونه

3 د معشوقو دَ لاسه سوی عاشقان دی ګرزی په سوران دی
ما ستړی کړی د ملکونو فقيران دی زلفِ بِر ماران دی
دا بی له نا څما په کار نه دی شالونه
زلفِ دِ تالونه

4 له ما چاپيره څوکئ ګرزی د تيلنګو
هار بِر د لونګو
سترګی بِر پتی دی پيالی وهم د بنګو
لوريمر دَ فرنګو ماله رانه شی څما دی محلونه
زلفِ بِر تالونه

3 ستا د خولی الفاظ یاره دی لکه مقراض
خنکه ظالم د پلار دی خوی ئ د خونکار دی
چیغی ئ په هر لوری دی
سری لنبی راپوری دی

4 ستا حسن جمال یاره زه ئ کرم پایمال یاره
په غاره کښی دِ هار دی زنه دِ انار دی
سیال دِ چرته نوری دی
سری لنبی راپوری دی

5 شعر د محمدین یاره دی واره رنکین یاره
پیر ئ شیخ رحکار دَی خنکه ئ خور کفتار دئ
څوك لایق دَ زور ئ دی
سری لنبی راپوری دی

## 83

GHAZAL DU MÊME.

## غزل د محمدین

1 ستر کی م دَ یار لکه د کل په شان دی
زره م نه صبریږی ما پروون لیدلی دی

2 وا م خست چکول د بی آرزی زه قلندر شومه
و راغلم دیار په کوشه ما کله پریږدی

4 په شان د مجنون شه خراب یم ژوندون
ہما راغی بیلنون ژاړم په سترکو سرو
راشه خارو

5 کل نسبا که پرسان اثری ئ تور چشمان
ور سره خانم جان که ئ کړم په نارو
راشه خارو

6 محمدین مستانه شه بیهوش دیوانه
رنجور دی د یو کال غور ئ کړه د دارو
راشه خارو

## 82

GHAZAL DU MÊME.

## غزل د محمدین

1 سپین مخ دِ کلزار دی زړه یم ناقلار دی
ستا زلفی سمسوری دی سری لنبی راپوری دی

2 په اور کښِ دَ هجران یاره دی خما کذران
هر عاشق له دار دی دغه ئ روزکار دی
کل غوښ ئ توری دی
سری لنبی راپوری دی

# 84

## GHAZAL DU MÊME.

## غزل د محمدین

1 دغه روزگار دی د فانی ارمان به وکړی د خوانی

2 دغه روزګار دی د فانی دنیا آخر به شی فانی

3 په کښ نوبت دی دورانی دغه روزګار دی د فانی
ارمان به وکړی د خوانی

4 مینی ته ګوره د فرهاد پری ئی که غر لکه فولاد
چه شه مین په شیرنی
دغه روزګار دی د فانی ارمان به وکړی د خوانی

5 قطبخان[1] د رانړیزو مینی بندی که دنیازو
مرګ شه میمه د خارو
دغه روزګار دی د فانی ارمان به وکړی د اخونی

6 آدم مین شه په درخو بیلتون ئی نه شه په پښتو
نشته دی مینه حقانی
دغه روزګار دی د فانی ارمان به وکړی د خوانی

[1] قطبخان اوسیدونکی د رانړیزو دآدمخان په خور چه نیازو ئی نوم وه پری مین شه بلو چه دَ آدمخان مرئی وه بی ګناه ئی هغه عاجز عاشق دشپی په وقت شهید که چه آدمخان خبر شه نو بلو ئی ووژه

ستړکی یې د یار لګه د ګل په شان دی
زړه یې نه صبرېږی ما پرون لیدلی دی

3 نشته طبیبان خما د رنځ څکه کړېږمه
غوښې ئی خما په سور انکار نیولی دی ستړکی یې

4 تکه زمانه شوه دَه وفا نه کاندی جفا که
یو ئی دی په څنګ کښې لس ئی نور نیولی دی ستړکی یې

5 که زړه شه ناسور له دی غم به مړشمه
نن ئی د غاز په خوا کښې بیا خندلی دی ستړکی یې

6 وئی غوړوه د زلفو جال
زه ئی کړم بی تیغ حلال
سره ئی دی لبان بل ئی پری پان ځخلی دی ستړکی یې

7 زړه زه صبروم زه محمدین که صبرېږی نه
غشی یې له زړه نه تیر و بیر ختلی دی
ستړکی یې د یار لګه د ګل په شان دی
زړه یې نه صبرېږی ما پرون لیدلی دی

4 اوښی دِ د سترګو په مخ څی شاه پریزاده ﻳ  
سترګی د جلادی تل ډکه له فساته ﻳ  
تیغ د کتارﻳ پری قتلول کوی جلادهٔ ﻳ  
جل•د بنګالﻳ تر تا لاندی هر فرنګ به شی  
اوښی دِ د سترګو په مخ څی نادانۍ زنګ به شی  
مه بِده پری د تور قمیص لستوڼی تار و رنګ به شی

5 اوښی دِ د سترګو په مخ څی حسن وسیار لری  
سپینی ګجموێ په ګریوانه باندی قتار لری  
بریښ دِ که له ورایه ډَ پیزوان غی آبدار لری  
تند وږی توپونه د پَیشۍ سره په جنګ به شی  
اوښی دِ د سترګو په مخ څی نادانۍ زنګ به شی  
مه بِده پری د تور قمیص لستوڼی تار و رنګ به شی

6 ګل د چمن ورکه محمدخان درته منت کوی  
ستا د خال وخط صفت هر درنګ په هر ساعت کوی  
ډیر دِ دی سګان د در انسان لمسون شدت کوی  
مه ئې اوره تقریر واره ﻳ پیر دِی خود په خنګ به شی  
اوښی دِ د سترګو په مخ څی نادانۍ زنګ به شی  
مه بِده پری د تور قمیص لستوڼی تار و رنګ به شی

7 داخال دِ کبینه په جبین پری دِ رنځور که محمدین
ورکه دارو د احسانی
دغه روزکار دی د فانی ارمان به وکړی د ځوانی

## 85

### BALLADE DE MOHAMMEDKHAN.

### چاربیتهٔ د محمدخان آشناغری

1 اوښی دِ د سترکو په مخ ځی نادانی زنګ به شی
مه ږده پری د تور قمیص لستونړی تار ورنګ به شی

2 اوښی دِ د سترکو په مخ ځی اسرار دِ کوم صنم
ناؤږ زړه ته پریوت څخو حال که را معلوم صنم
چا ئ قهرولی زړئ واخله راته نوم صنم
درنګ ساعت له کوره که خدای کاندی چنګ په چنګ به شی
اوښی دِ د سترکو په مخ ځی نادانی زنګ به شی
مه ږده پری د تور قمیص لستونړی تار ورنګ به شی

3 اوښی دِ د سترکو په مخ ځی ولی زهیره یې
کرزی د ګلابو په باغځو کښِ عالم ګیره یې
ډک اوربل د ګلو رنګ زیړئ د جینو میره یې
ستا د حسن د وربل سپرلی له دا ورنګ نه شی
اوښی دِ د سترکو په مخ ځی نادانی زنګ به شی
مه ږده پری د تور قمیص لستونړی تار ورنګ به شی

4 روغ ئې ليمونې کرم چه راتله په مازدکر صنم
راغله برابر صنم
شين رنګين واغوست محبوبا په زيور پوره دَه دا په مثال خورَ دَه
غرۍ ئې په هر لور په هر ځاۍ کښې دا مشهورَ دَه
سپين مروند ئې توره دَه

5 غوږ پرې ضمير که مدام پروت دې يم په در صنم
راغله برابر صنم
شين رنګين ئې واغوست جينۍ شان د بدرۍ لرې
سرې شوندې اورۍ لرې قت په ګريوانه باندې شيرنم سوه مرۍ لرې
توَل دَ دورانې لرې
ور به محمدخان له که خيرات دَ غاړې هار صنم
راغله برابر صنم

## 87

### BALLADE DE NOUREDDIN.

### د نوردين شاعر چاربيته

1 ما وليده يارانو د ليلا په سپين جبين    خالونه دې څلور
ما وليده يارانو د قلزم د بادشاه لور    هر دم نوې سنګار که
پالنګ ئې اچولې دې پرون په کوټه پور    مکيزه ګل نګار که
بنپو تر سره پورې پئلې مرجان دُر    چپاوُ په ګناه کار که
سوره څې په پالګۍ کښې چاپيره ترينه تابين    غر د خيال تکور
ما وليده يارانو د ليلا په سپين جبين    خالونه دې څلور

# 86

## BALLADE DE MOHAMMEDKHAN.

## چاربیته د محمدخان آشناغری

1 شین رنګین ئې واغوست دوپټه ئې کړه په سر صنم
راغله برابر صنم
شین رنګین ئې واغوست محبوبا ګل خندانه شوه
ورورو راروانه شوه    دا د ګل غنچه وه    را بیرونه له بوستانه شوه
ښه راته عیانه شوه

2 مخ ئې له حجابه راسرکند که په هنر صنم
راغله برابر صنم
شین رنګین ئې واغوست محبوبا غنچه د ګلو ده اوس د بونیولو ده
زنه آلوچه ساتې سوچه لور د مغلو ده خان له د ساتلو ده

3 ګل زیور ئې واغوست چه راتله په ښنګهار صنم
راغله برابر صنم
شین رنګین ئې واغوست محبوبا د ګلو لښته ده نه ماتیږی سخته ده
لا ئې خوند پیدا که چه رانږئ کوزه له تخته ده
بیا دچا له بخته ده

# 88

BALLADE DU MÊME.

## چاربیته د نوردین شاعر

1 سترګی ګلونه د انارو — کاته دِ اسری
سترګی دِ سری وینم ښارو — مولا درکړی نور
ستا د پیزوان په کنارو — چاپیر تړی ثه دُر
غور دِ وکړه دَ دارو — شوم زه تاپسی رنځور
خبر دِ واخله په تلوارو — کوم درته زاری
سترګی ګلونه د انارو — کاته دِ اسری

2 هلکه مه کوه وسواس — شوم په تاپسی بنګی
تا د یاری راکړی لاس — سپین ښه ړانګی
زه لړم په سینه پاس — یمه لور د فرنګی
صورت دِ توکی د چوتارو — جامی دِ زر زری

3 جامی دِ ردی زرکش — ښائسته په تیغ سوران
په دروازه کښِ د حبش — درتلی نه شی خواران
ورکړی د سرو لبانو رش — بچلا که رنځوران
کرزی په سوری د چینار — ناترسی باك بری

2 سوره خمر به پاکئ کښې په عالمو ږ دبدب    کوم خپله چرچه
خدمت ږ سهيلئ که راته کرزی په ادب    په خوی نه يمه کچه
پيدا ايمر له ايرانه زوروره په نسب    پولاد يمه سوچه
خما خبری کيږی په مشهد او په وزبين    ورهيسته په لاهور
ما وليده يارانو د ليلا په سپين جبين    خالونه دی څلور

3 خوری دِ شولی کوکی د ښائست په صوات بُنير    رنځور د کرم بلبلی
هيشه کرزی خوشحاله بالاحصار در نه چاپير    سری نوکی سری منکلی
محل کښې دِ ولاړه کوره وُنه دَ نميير    تازه ئ دِی غندلی
بنيه بقال خراب نه که د ستا صورت نيازبين    دلاله دِ شوه موږ
ما وليده يارانو د ليلا په سپين جبين    خالونه دی څلور

4 مهران ږ به جبين د پاخه کاندی پلوشی    سيزمه خلق له لری
تيری دی له الماسه د سرکی پيزوان لشی    جړاو پری ملغلری
کړه درومر له خياله تل د بنګو په نشی    باريکی ږ خبری
در به کرمه تاله انکی دواړه کبين    ياره ونه کړی پری زور
ما وليده يارانو د ليلا په سپين جبين    خالونه دی څلور

5 خما د خولی خبری ملغلری د صدف    څرکند وِينم ناسوت
ميان نور ميان الداد راسره څی به هر طرف    په ننک ولاړ مظبوط
ويل د نوردين که چری نه وِی مشرف    روښان لکه ياقوت
دسته به کرمه ستا په شاکردانو د کوبين    په چاربيتو کښې م اور
ما وليده يارانو د ليلا په سپين جبين    خالونه دی څلور

راشه واچوه لاسونه په یارانو
چه ئې روغ شي د خیراز زرګی درزونه
د پالنګ د پاسه ده ناسته نوابه
انګې اوصدفونه وُو د دُرو . . . سره مهران

2 کاغذی دې خما سره انګی دواړه
ما ساتلی د سینی انار ستوچه دی
ستا خما په مینه پوهٔ شه خلق واړه
زور بری مه کړه خوانی مرګه لا ګچه دی
تور لونګی سپینه اوګئ جمیل په غاړه
توری زلفې پر دَ عطرو په نچه دی
ته په ما پسی وتلی وی له خوابه
نرئ شوندی پر دارو دې د ربخورو سره مهران

3 تا پیرزو په ما د نرمو شوندو رش که
په جرا پر سترګی سری دې له نمیره
د سینی باغ دِ وما وته پیشکش که
دوست پر نشته دښمنان له ما چاپیره
بیکا درخمه ته خبر واړه حبش که
له صورته پر آفت نه شي برخیره
عاشقانو حیا وساتي توابه
ورکدیری په باغچه کښِ دَ انګورو سره مهران

4 زه دِ وسومه په مینه د انارو
د بنائست ثاني دِ نشته په منډر کښِ

4 ما اچولی دی پالنګ      نن په سوری د ګلاب
شوم به تا پسی ملنګ      ځکه کړی په عذاب
زه په سینه ساتم لونګ      نن به تا کتم ثواب
په خوله مِ جوړ نه کړی پرهار      چه پرته شم قعو سری

5 زه نوردین د خان آزادیم      نوکر نه یم د بل
میان عمر د الله دادیم      په ما خوره منګل
وایم توره د فولادیم      که پرِ جمعه کړی سلسل
په پیښور په ننګرهار      دبدباو د بتمباری
سترګی ګلونه د انارو      کاته دِ اسری

## 89

BALLADE DU MÊME.

## چاربیته د نوردین شاعر

1 سره مهران د په مخ ځانګی بی حسابه
خوشبوئ درخنی خیژی د کافورو
ملایانو روایت که له کتابه
چه دا هسی وربلونه وِی د حورو
په جبین کښِ دِ رنړا شوه د مهرانو
بیلتانه رابانـدی وارهول قرضونه
اور ئی بل که په وزرو د خوارانو
هیڅوک نه آوری د خوار سری عرضونه

مازیګر راشه په تلوار زه یم بلبله      له جینکو نه پاتی شوم ستا له کبله
تاچه خبره د کوګی راته کوله
راځه چه درکړم سپینه خوله زلفی تار تاری
مازیګر راشه په تلواری خما یاری . .

2 زلفی تارتار م غوړلی راته کوره
مروند م نسه مه شرمیږه له پیغوره
چه م دادا ووزی له کهوره
راځه کښینه په دی سره پالنګ قلاری
مازیګر راشه په تلواری خما یاری

3 راځه کښینه په ده سره پالنګ د پاځه
سرګی لبان به در کوم د زړه له خلاصه
سینه م بند په بند ماتیږی ستا له لاسه
حسن م باغ ته ئی طوطا کړه په ګلزاری
مازیګر راشه په تلواری خما یاری

4 حسن م باغ دی په کښی شته دی زیړ ګلونه
دله درتلی نه شم ستا د زلفو دی شپلونه
دری څلور د په لنډئ څنی خالونه . .
نورشالی غواړی ستا نری شونډی آبداری
مازیګر راشه په تلواری خما یاری


IMPRIMERIE NATIONALE.

یوه قلا درنه چاپیره د بنګارو
ملغلری دِ څلیږی په کنګنړ کښِ
مرګ دِ وینم په سولیٔ د ګنهګارو
له ښکساکه ږ خوب نه شی په انګنړ کښِ
د دادا عقل ږ زیات دی له غرابه
څوکیٔ کرزی چه خوراك نه شی د تورو   سره مهران

5 را مدت شي په هر دم ږ الداده
مخ کښِ نرم عجب کرم دِ دلبار دی
ته ږ پیر زه دِ مرید باطن پولاده
ننګیالی میان عمر صاحب دِ یار دی
ککریٔ دِ دښمن ته یوسی آزاده
نوردین ویل په تا خما اعتبار دی
ما بیرون که د غونو له دریابه
ښه خلوت درځخه غواړم د سندرو
سره مهران دِ په مخ زانګی بی حسابه
خوشبویٔ درځنی خیژی د کافورو

## 90

### BALLADE DE NÛRSHÂLÎ.

## چاربیته د نورشالی شاعر

1 مازیګر راشه په تلواری خما یاری
ګودر له ځم چه ملګری شو په لاری

# 92

## BALLADE DE QÂSIM.

## چاربيته د قاسم

1 خال دِ ايښى دى د وروزو په پيوند باندى
زړه مِ ربند شه ستا د زلفو په کمند باندى
خال دِ ايښى دى د روزو په محراب پرون
ددروغو دِ راولېږه جواب پرون
اکاهو دِ مخ ته ونيوه حجاب پرون
اوس مِ نه کيږى باور ستا په سوګند باندى
خال دِ ايښى دى د وروزو په پيوند باندى
زړه مِ ربند شه ستا د زلفو په کمند باندى

2 اوس مِ نه کيږى باور چه ستا وعدى وارهٔ خلافِ وى
حرامُنيا که دِ کړى راته لافِ وى
په کتو کتو شما ستركى خون ناکى وى
حق حريانَ شوم د دى يارئ په بند باندى
خال دِ ايښى دى

3 حق حريانه شوم پيدا دخه بلائ ته
شرم نه لرى بى شرمه بى حيائ ته
خداى د کاندى په تمام جهان کښِ ستائ ته
بلبلان دِ سلام وائ ستا په چمن باندى
خال دِ ايښى دى

# 91

## GHAZAL DE PÎR MUHAMMAD.

## غزل د پیر محمد

1 راغی راغی په ما بانډی نن دوران د بیلتانه
داغ داغ په زړه راکړ خیل جانان د بیلتانه

2 مه راځه طبیبه څما رنځ دی نا علاجه
نه دی نه دی چا روغ کړی رنځوران د بیلتانه

3 نشته داسی څوك چه د زړه حال ورته بیان کړم
څیری څیری کړیوان لاړم په فغان د بیلتانه

4 لخته د ښنډنرو وه بی پروا لاړه خزان شه
دړی وړی لاړه په طوفان د بیلتانه

5 تښته پیر محمده د دنیاله شرو شورَ
شاه که قدم کیږدی په چشمان د بیلتانه

2 غم دا رنگه تیرېږي عاقلان په پري پوهېږي
لکه کوز چه نور څرکند شي پاس په آسمان ورو ورو

3 که سودا کړي نن دِ واردي د دنیا گرم بازار دي
هلته څائ د سودا نشته رخصتیږي کاروان ورو ورو

4 عالم وارِه په خندا دي که بادشاه دي که گدا دي
سید احمد باندي وریږي د غمونو باران ورو ورو

# 94

## GHAZAL DE SAYYID KAMÂL.

## غزل د سید کمال

1 یاره وسوم ستا په مینه تل زه خراب تراب یم
د اوښو م دریاب دروی په مخ باندِ غرقاب یم

2 لکه کاڼي چه هامون درياب ته پرېوزي داسي لاړم
دوباره به تر را نه شم زه ژوندي په مړو حساب یم

3 لکه خس په سرو لنبو باندِ چه کیږدي داسي سوزم
حلال دِ کړم نن بیا په تیغ زه په بند د کوم قصاب یم

4 خلقي م تماشو لره له لري ملکه راغلي
زغلوي م لوي وارِه سرتور عاشقانو کښِ حساب یم

4 بلبلان دِ سلام وائي هم بندی شول ادم
پیریان دِی که دیوان هم عرب هم عجم
زه به څه وایمه که نه ویښتی دا نور عالم
ستا صفت دِ پښتو کړی ذی په خونه باندی

خال دِ ایښی دی

5 ستا صفت دِ چه کوه واړه بی او یه وِی
د غضب خولی د توی د یار د او یه وِی
لکه شنډی وُنی بی ثمره تو یه وِی
عاشق تاته ستړی شوی ذی په پند باندی

خال دِ ایښی دی

6 عاشق تاته نصیحت کوه ولاړه وِی
د کوکی نښی دِ داوِی چه دِ دِرِ تعویز په غاړه وِی
دِ نرینی د شمشیر ئ جینکئ واړه وِی
د قاسم سره اخته نه شی په کمند باندی
خال دِ ایښی دی د وروزو په پیوند باندی
زړه دِ بند شه ستا د زلفو په کمند باندی

## 93

GHAZAL DE SAYYID AHMAD.

## غزل د سید احمد

1 زړه مِ دم په دم غوخیږی په جفا د جانان ورو ورو
له چشمانو نم بهیږی صبح شام په کریوان ورو ورو

6 نن دِ لاس ور باندی بړ دی ای توکّل
درود وایه پری حلال کره شیطان رو رو

# 96

GHAZAL DU MÊME.

## غزل د توکّل

1 مستانه یارا ستا یم
دیوانه یارا ستا یم
بی له تا پړ ژوند خراب شه
اندرون ځما کباب شه

2 عجب شور وه د بلبلو
بورا ناست وه په غندلو
صبا کوځ کا په آگاه یم
مستانه یارا ستا یم

3 دواړه سترگی را ښکار کا
د زړه غم مِړ اواره کا
ستا په لږ نظر بادشاه یم
دیوانه یارا ستا یم

4 وا به نه وړم ستا د لوری
که مِړ سنگچه سینه اوری
یارا ستا د در گدا یم
مستانه یارا ستا یم

5 د سرو شوندو په آرزو کښې زړه تنور شه لکه ګلذار په ما
هیڅ پروانه که بورا په ګل زه حیران په دغه باب یم

6 دواړه سترګې مې ګړې توری سید کماله ستا کښې لړه
په مژګانو د مرګرمه زه ناترسه دپنجاب یم

## 95

GHAZAL DE TAVAKKUL.

## غزل د توکّل

1 نن د خیاله خیاله دِ زنګیرې زلفان رو رو
په سرو شوندو شوندو دِ ریبرې پیزوان رو رو

2 زاهدان چه زاهدی که ګوشه کښینی
خوځوی په هردم ذکر زبان رو رو

3 لاس په سر شه د دنیا د کاروباره
رخصت غواړی له کالبوته روحان رو رو

4 د هجران په لنبو وسوم بد مې حال شه
څکه ما باندی څرخیږی آسمان رو رو

5 د خشخاش په شان مې زړه زری زری شه
مخ څرګند که له نقاب چشمان رو رو

# 98

## GHAZAL ANONYME.

1 نن ځما په تا پسی د زړه بازار نړیږی
که لوند مِ پری گریوان شه دواړه سترګی مِ جړیږی

نن ځما

2 سپین مخ دِ له آفتاب شغلی که بی حسابه
که زړه مِ شه خراب دچا په ما خوا سړیږی

نن ځما

3 د زړه نه مِ سیلاب ځی نغمی پری د دریاب ځی
د سترګو نه مِ ناب ځی ستا دیدن په کښِ غړیږی

نن ځما

4 چه ښین خال دِ را یاد دی دا خراب خاطر مِ ښاد دی
دِ دیدن مثال د باد دی عاشقان کله مړیږی

نن ځما

5 روغ صورت مِ تا بیمار که چه وربل دِ تار په تار که
اول بند دِ پری خپل یار که په زلفینو کښِ پریږی

نن ځما

5 زه توکّل به ستا صفت کړم
څوم ساه وي په بدن کښې
زه غلام د شهنشاه يم
مستانه يارا ستا يم
ديوانه يارا ستا يم

## 97

GHAZAL DU MÊME.

## غزل د توکّل

1 نن مې وليدلی د ليلی سينه کشمير دی زړه مې هواګير دی

2 باغ ئې د سينې مثل ئې نشته په خوبانو کښې
د سرو تيک ئې بادشاه خال ئې نواب پېزوان وزير دی

3 باغ ئې د سينې په کښې طوطيان په چغارو دينه
دم په دم فرياد کا چه زخمي د عشق په تير دی

4 درست صورت ئې ګل دی د يار مخ دی شاه له باغه
رنګارنګ ميوې لري طوطي په کښې جاګير دی

5 باغ ئې د سينې زلفې شانه کړې مه جبين
مړ د توکّل کړ خاص مريد د دستګير دی

# CINQUIÈME PARTIE.

## MŒURS ET FOLKLORE.

---

### 99

AFẒAL KHÂN DE JAMÂLGAṚHÎ.

SATIRE DE MAḤMÛD.

1 شاگرده په جمال گړی کښِ شته دی افضل خان
اوستاده خال ئ وایه ډیر صفت کوی د خان
صفت کوی د خان هم د زامنو هر ساعت
شاگرده د میمه ورځه نشته هیڅ عزت
اوستاده خدای د پری باسی پده بانډِ آفت
شاگرده په شومانو بانډِ تل وایه لعنت
اوستاده بد ئ خوی دی بد زبان بد ئ عادت
نه شته نه به پیدا شی نور دده غوندِ شومان
شاگرده په جمال گړی کښِ شته دی افضل خان
اوستاده حال ئ وایه ډیر صفت کوی د خان

2 شاگرده چه میمه په سترگو وینی له روایه
اوستاده ورته وائ راغلی له کومه ځایه
شاگرده په پښتنه ئ ابتر که سر تر پایه
اوستاده نه ئ ترس شی نه ئ یره شی له خدایه

6 يو بل په ما نيران ډي بل وطن را باندي ګران ډي
چه يار ږم بنديوان دي څکه رنګ څما زيړيږي
نن څما په تا پسي د زړه بازار نړيږي
که لوند ږم پري ګريوان شه دواړه سترګي ږم جړيږي
نن څما

شاګرده ما شروع کړه څه ابیات له هغه درنګه
اوستاده دَ ارباب په خاطر خلاص شولی له جنګه
شاګرده بل به نه وِی د افضل په شان ئې ننګه
اوستاده شوی خوشحاله چه خوشحال خان درکړله پنګه
شاګرده افضل خان په دی جهان کړ خدائ بعدرنګ
محمود وائي جاری په بازار خوزومر زبان
شاګرده په جمال کړی کښِ شته دی افضل خان
اوستاده حال ئې وایه دیر صفت کوی د خان

# 100

## BALLADE DE LA GUJARE.

په یوسفزو کښِ یو کلی دی چه مردان ته نژدی او نوم ئې ګوجرو ګړئ دی او هلته تول د ګوجرو قومر اوسی په هغه کلی کښِ یوه ښځه وَه چه نومر ئې پائ وُه په هغی زمانه کښِ د هغی په شان بله ښځه ښائسته نه وَه او د ښائست شهرت ئې ځائ په ځائ خور شوی وُه په سلګونو سړی وربانده مین وُو مګر د منګل تانړی یو سید چه نومر ئې عباس میان وُه هغه په دیرو جنګونو او په مقدمو او په رېړونو او په بدو له ګوجرو ګړئ نه پنجتارته فتح خان څخه ئې بوتله بیا ئې له څو مودی پس خپل کلی منګل تانړی ته راوسته او محمد خان د مردان هم پری عاشق وُه چه خلقو ورسره دیری چاربیتی ویلی دی یوه چاربیته ئې دا دَه ته ئې واوره

1 هغه ګل رنګه لیلی وروکه شوه له یاره ناری شوی لورَ لور پسی
ګوجری مه کوه راپاڅه له پنجتاره ستا کبر شه نسکور دغسی
قسم په خدائ دی چه عمل به پرِ ونه کړمر د عمر کړیدون دی خما

شاګرده دی په اصل کښی راغلی دی له سرابه
اوستاده نوم په ده نوی بد نام د نجف خان
شاګرده په جمال ګری کښی شته دی افضل خان
اوستاده جال ئی وایه دیر صفت کوی د شان

3 شاګرده په حجره کښی میلمه نه پریږدی په کټ
اوستاده خولۍ وازه وی په شان د وران هرټ
شاګرده غاش ئی نشته خولۍ توره لکه بټ
اوستاده په خوئ سپور دی په رنګ تور دی لکه چټ
شاګرده چائ که تنی غوس تنه غوځ کړلی چور لټ
اوستاده ئی غازی دغه موذی که مسلمان
شاګرده په جمال ګری کښی شته دی افضل خان
اوستاده حال ئی وایه دیر صفت کوی د شان

4 شاګرده دَ سرکار په کور کښی دی هم انعام خور دی
اوستاده نه پوهیږم څه هنر او څه ئی زور دی
شاګرده په قسمت باندئ خوری د انګریز کور دی
اوستاده ناست وی کور لکه دی چور له خوبه سپور دی
شاګرده بد زبان دی په خوله باندی باد خور دی
اوستاده رنګ ئی ورک شه شرموی به خاندان
شاګرده په جمال ګری کښی شته دی افضل خان
اوستاده حال ئی وایه دیر صفت کوی د شان

5 شاګرده محمود وائ چه زه راغلم له کاټ لنګه
اوستاده ولی کښیناستی د دی موزر ترخنده

# 101

LA MORT DE NAʿÎM SHÂH.

BALLADE DE YASÎN.

## د نعیم شاه د مرګ چاربیته

1 خلق ېي راغی ناګُمانَ دی په کښِ ایسار شه
نعم شاه دَ تورو غرونو باز وه      دی خو په زړه بانـدِ دراز وه
د ده د مـرګ راغـلی آواز وه
را ناګُمـانَ دَ تـو پـکـو دزهـار شـه

2 دزی ېي وشـوی دَ تـوّابُ      دباو ئُ زیات وه له نـوابُ
سترګئ رابورته کړی له خوابُ
د امزری په دغه څلی حـطـا ګـزار شـه

3 امـزری ووِ پـه را شـان      چری غوبل وی په میدان
پـه زړه ېِر پاتی شـه ارمان
کوځ له بوتللو اجل د څوکِ پکار شـه

4 اجل وِ مه څه ته په ورانـدِ      دَ دِ انګور بـوتـی دلانـدِ
دشمـن ېي راغی لانـدِ بانـدِ
کسان د خدایه نه ویریږی ناربـتـار شـه

ترنګړۍ په غاړه لوړ په لاس وله وابنه کړم ووړوک شه داسي ژوندون دي خما
فليلي ښنړي مقيشي خوله به ورته کړم کومک اتمان ګډون دي خما
قاصد پر تلي تر کابله تر خراسان بيا ګوره خما زور دغسي

2 زور دِ اوبه‌شه خونړۍ نصيحت نه آوري خويش کړي دِ دا شر دي نا
شاباش تاله چه تينګه په اقرار ئ دا وکړي د خپل سر دي نا
د نا مسم لوري محبوبي دل آزاري سرونه دِ ورور دي نا
هغه جوړۍ ورونړه دِ ورو‌که‌کړه له پنجتاره که شو بندي د ګور دغسي

3 ګام به وا نه خلم د ګاندو آشنا په لوري ما کړي دي قسم مينَ
ما نصيحت آخستي دي ديار غزولي ما کړي دي سوګندمينَ
دادا پرشله د خنشا دپاره بولي ماکړي دي خو زغم مينَ
لله چه زه ومر داسي ته شوي نا پکاره ما وران که ودان ګور دغسي

4 ته چه ماته خوشي وائي دله رعيت دي راشي پلي سواره در سره
حال ته م نه ګوري چه غم سره وچ کلك شوم غونو کړم سکاره در سره
تا آوريدلي نن دچا د توري کړس دي شاه مرشومه په غره در سره
زه غشي ولم ته راشه تکونه شماره ما مره کړه دري څلور دغسي

5 که عنائتي اوس کړي مکوه سم شه ګوجره د پتواريمه زه
که څوك پردي خبري کاندي په خپل غم شه ورکډه په بازاريمه زه
سر به دِ پر کړم قالري کښنه دمر شه بلبله د ګلزاريمه زه
زه پرديسي دله راغلي دل آزاري خوله راکړه مکړه شور دغسي

# 102

## LE CHEMIN DE FER.

### BALLADE DE MAḤMÛD JÂN.

يو داسي عجب شي دي چه روان په زمکه بر ښي 1
نه ئې ښي شته نه لاسونه وړاندې ورستو برابر ښي
يو داسي عجب شي دي چه پيدا شو لوی آفت
انګريزو دي جوړ کړي دغه نښه د قيامت
پيچونه په کښې ډير دي ولې زيات د اور قوّت
د تلو په کښې صحت
دوه وخت رفتن که يو په شام بل په سحر ښي
نه ئې ښي شته نه لاسونه وړاندې ورستو برابر ښي

شاګرد غوږ ږي کيږده نو دري قسم ګاډی کوره 2
اولو کښې اعلی وي په دويم کښې ناست وي روره
دريم درجه کښې ادنا ناست وي لور د لوړ
روان چه شي د ګاډيه په نارو لګه د خر ښي

روان چه شي د ګاډيه اټک پوري لار 3
وي په يو ګړي کښې تېر را وګرزي دوبار
که تلوته دي حاجت وي زر محصول ورکه په شمار
په اوسپنه رفتن که برابر په ښه هنر ښي

5 د ازل ښکلی نه نوریږی    کسان د خدایه نه ویریږی
لعنت هغو باندِ وریږی
څاه ئ بدن کښِ چه داخل ږِ تانړه‌دار شه

6 تانړه‌دار وِو راته وایه    ولی خوبونَ کړی ی ځایه
تو پکو وخوړی له ورایه
اظهار ئ ورکه تانړه‌دار له بیا تلار شه

7 اظهار ئ ورکه برابر    کوتیَ له ئ وړِی دَ پیښَوَر
دا ټول عالم شه پر خبر
مخ د نعم شاه کوری را ټول پر خلق دَ ښار شه

8 کوتیَ کښِ وشه ملاقات    بهادرَ کورِ شه میرات
پیدا به نشی نعم شاه غُندِ جلات
دده په مرګ باندِ خپه انګریز سرکار شه

9 مور ئ را ووته له کورَ    انګریز ته ودریده سر تور
ځونو زه کړم تک توره
واِی یاسین دیری دَ ښاورو پر انبار شه

2 موړۍ بلو په بلو کوزی
محبت زوبه له سیالۍ د پریسته

3 څلور کوتي څلور دا لانه
د محبت خان مور له چا کتکۍ نه ورکونه

4 د محبت خان مور نه وَه میره وه
نه لیونی شوه نه ئې واغوستل کندونه

5 موړۍ په سپینو اندیرو خوب کړه
د محبت خان دوینو ډك شو پړ هرونه

6 محبت خان مړ ارمان ئې وکړ
زاړه مِړنه کړه د سنبل خان د لور داجونه

7 محبت خان مړ ارمان ئې وُکه
واده مِړنه کړه باجوړۍ په نشانونه

8 ترکانړۍ په ژړا شوه
ترکانړۍ مور ته په ژړا شوه
څما راغلی تیك بیا په بیړ ته څی نه

9 ترکانړۍ مور ته په ژړا شوه
دسینی کل مِړ په مخ وریږید نه

10 ترکانړۍ مخ ته په ژړا شوه
کاکا څما د پیړ کړومات شو میخونه

4 بو داسی عجب شی دی چه روان په زمکه بړ خی
انجنړئ دی د اوسپنی تمام واړه اسباب
ولاړ په کښې انګریز او تور مخون د پنجاب
دا حکمت ئ پربرده بل په تار کښې ئ خبر خی •

5 شاګرده که پوهیږی په اټک کښې شو اسار
انګریزو دی جوړ کړی نوی پول ورته تیار
ئ شانه روئ لګی څوک ئ نه کوی ایتبار
چاربیته پړ کړه جوړه اوس ئ وایمه په جار
که وائ تول عالم چه په اټک به په خطر خی
نه ئ خبی شته نه لاسونه وراندې ورستو برابر خی

6 که وایی محمودجان چه تحقیقاتِ کړی ما دی
خبر ئ هر ملا دی
هر څوک وله ور زغلی په پیسو باندې ویریا دی
روان دی په هوا دی
باری نن دی که صبا دی په طرف به د خیبر خی
نه ئ خبی شته نه لاسونَ وراندې ورستو برابر خی

## 103

### LA MORT DE ÇUHBAT KHÂN.

MIÇRA‘S.

1 مور ئ بلوبه بلو کوزی
صحبت خان زوی میلمانه راغلی دی نه

زه وړوکی هلك یم پلاره واوره دا منت خما
ور نه کړی دولت خما ښځه نه شرمیږی
خلق به تام کړی ملامت خما
نشته دی طاقت خما
آورمه په غورو پښی شا چه ته انکور کنوی
زه وړوکی هلك یم پلاره خله ماله کور کوی
جینۍ به وی ناشنا دَدِ طمعه دَ میره کیږی
وائ وائ تحم وختی ماله ساړه کیږی

2 زویه یوه جل به ودوو دله کورو به ساوُو دله
ته له ویری مه مره یوه کوزه به تودهوُو دله مونږه آکاوُو دله
خاندی به عالم زومرِیه ته چه دخان شور کوی

زه وړوکی هلك یم پلاره خله ماله کور کوی

کور به ښائسته وِی چه نمسی په کښِ واړه کیږی

وائ وائ تحم وختی ماله ساړه کیږی

3 پلاره ته چه دا خبری کړی شرم به راپورِ کړی
نه مِر ده په کار که دواړه سترکی وله توری کړی زلفی ئ سمسوری کړی
تول عمر خدمت به پلاژ ته د دغی نکور کوی
زه وړوکی هلك یم پلاره خله ماله کور کوی

4 خطا مِرخی کذارله مردار چه په کواړه کیږی
وائ وائ تحم وختی ماله ساړه کیږی

۱۱ د محبت خان دومره پکړئ وَه
چه دَ پلئ د جینو جوړ شو رومالونه

## 104

### MIÇRAʿS DE LA FILLE DE ʿABBÂS KHÂN.

1 ور شئ فرنګی ته هسی وائ
په باغوانانو خانان چا وژلی دی نه

2 د فرنګی په جیلخانه کښ
عباس خان وکړه د مصرو تورو وارونه

3 د فرنګی په جیلخانه کښ
عباس خان ناست دَی نوکران ئ کړی جنګونه

4 د فرنګی په جیلخانه کښ
عباس خان وړتیرِی د وطن په ارمانونه

## 105

### LE PETIT GARÇON QU'ON VEUT MARIER.

#### BALLADE DE KARÎM.

د هلك

1 زه وړوکی هلك یم پلاره څله ماله کور کوی
وائ وائ سحر وختی ماله ساړه کیږی

3 یاره ستا په جیب کښې پیزوان ښما وه
ما منګی د کوه درته پر پام وه
چه منکر پری نه شي تاله قرآن دی
یاره ستا په جیب کښې ښما پیزوان دی

4 یاره قرآن دِ راکه دا بیګناه
په خپل کټ کښې پروت وُمر ان تر صبا
دا وبل دِ لبړدِی دیهر ناصلا
ما به ښنګ آخست هم داسی شان دی
یاره ستا په جیب کښې ښما پیزوان دی

5 یاره که حاکم له لاړی ترینه ویریږم
نه نیاز بینی جینی نه تری شر میږم
چه غل نه یمَ په دی زهیریږم
په اور سوی نصیب د ظریف خان دی
یاره ستا په جیب کښې ښما پیزوان دی

## 107

### LES FEMMES AFGHANES.

### GHAZAL DE MÎR AFZAL.

## غزل د میر افضل چه اوسیدونکی دَ دیشانو علاقه دَ یکلیٔ دَی

1 ښما ربَ معشوق شوی تکړیٔ
عاشقان جړا کوِی هره کړیٔ

زويه ګوره چا کړلی نظره ته   سپك شوی له وزړ ته
نه مني په نيت دَ زړه يوه ښما خبره ته   زه وروك شه ډنګره ته
خلاص د شومړ له غه اوس به کسب راته زور کوی
زه وړوګی هلك يمړ پلاره ښله ماله ګور کوی
کريمړ وائی نامرده داسی چار خو په زاړه کيږی
وائ وائ سحر وختی ماله ساړه کيږی

## 106

PROCÈS D'AMOUREUX.

BALLADE DE ẒARÎF KHÂN, DE PÊSHAVAR.

### چاربيته د ظريف خان شاعر د پيښور اوسيدونکی

يارة ستا په جيب کښِ ښما پيزوان دی ١
کمان مِړ نښتی پرون ماښامړ دی
يارة ستا له جيبَ پيزوان مِړ مارا
ما ويښتيده له خپلَ ربارَ
ويريږمه زه له خپله پلارَ
که خبرشی دا جوند مِړ ګران دی
يارة ستا په جيب کښِ ښما پيزوان دی

يارة ستا له جيبَ پيزوان زه غوارمړ ٢
حرامړ د خدائ شه که زه درنه لارمړ
حاکمړ له به ښمه ورته به جارمړ
چه چا له ښه شی خرکند تاوان دی
يارة ستا په جيب کښِ ښما پيزوان دی

11 دَ دیشِی جونه خوړی لکه نابات دی
قلندری جونه دِی دَ کجبوړیٔ

12 د تهاکوټ جونه کونتری بغدادی دی
پښپوئ بنانی په سر اوډنیٔ

13 د الائ جونه مکروه رنګ ئ نشته
په اوړِی ژمی آغوستن ددوئ شړیٔ

14 مخ ئ تور په لوکو جُنبی ګرزی
مګر ښی دِی ګنګاتیٔ د جوجړیٔ

15 دَ کوهستان جونه له خیلمی ښاپیرئ دی
په پتمړ کښِ عجیبه دنګی غړیٔ

16 د کانړا او د غُربند جونه ګډی پیائي
ستروندی جونه دِی دَ لیلوړیٔ

17 آز بخیلی جونه حوری دَ جنت دِی
دوئ موندلی په دنیا کښِ دِی مانړیٔ

18 بابوزئ مخوزئ جونه دِی اشرائ
تور اوربل توری سترګی سپینی دړیٔ

19 چغرزی جونه چه لوئ خیتمی ګرزی
سبب دا دَی چه خوراك پیلوړیٔ

2 په کشمیر کښې ښې داسې بشرې خیژې
چه ئې زلفې تال وهي لکه ناړې

3 سراسر په مظفر آباد کښې حسن نشته
دَ بمبو جونه واړه دِي رانړې

4 په بالاکوټ کښې اصلي دَ چندنړو لختي
له خپل یار سره دِي غاړه غاړې

5 د پکلئ جونه قبیح دِي رنګ ئې نشته
مچ بنړکې کوتاه قدې پوکړې

6 د بفې جونه کړې له خیال ګرزې
مازدګر اوبه له ښې جوړئ جوړئ

7 په اګرور کښې جونه نشته خیوه ناکې
شب وروز دَ دوئ په لاس کښې وِي ګودنړئ

8 دَ کونښ جونه دَ یارئ لایقې نه دِي
اثر ناکې جونه دِي دَ جبور ئ

9 په نندهار کښې دَ دودالو جونه نازکې
دَ دوې واړو سر تمام په پاکورئ

10 د تکرئ جونه ببر سرونه ګرزي
بل له پوزې ئې بهیرې کنز پونړئ

هلته یو ډبلی ډك دی دروبو
الّهو پشی شه پیشو    دلی مه راځئ غلو
خما بچی داسی اوده دی لکه کودی د مصرو

## II

شولی وارړه شولی دَ شکئ شولی سمسوری
ستا ورور به شولی راوړی
د رومال په پلو بوری
واخله خپلی مورِ داسی نه دِی لکه نوری

## III

دوه دِ غبتی سترکی لکه ستوری دَ آسمان
یو دِ سپینکی مخ دی لکه تخت د شاجهان
دوه دِ نری لیچی لکه توری د ایران
یوه دِ نری ملا ده لکه طوغ دَ سلیمان
زار زار ژړا مه کړه د ارمان

## IV

وائ وائ زوی مِرچا وهلی وُه
دبدب ئی په ملا وهلی وُه
کورته په ژړا راغلی وُه
مور ئی الاچ که پلار ئی چا کلك نیولی وُه
وائ وائ زوی مِرچا وهلی وُه

## V

تاتئ په تاتئ کښِ د پیرخان سپینه کوکئ تاتئ زنګوتئ

20 اکازی جونه له ښیځی غوبنی ډِی
چه ودیری داج وړی وله ترنګړی

21 حسن زئ جونه تُورئ ډِی د غانټولو
د اختر په ورځی ښی غوړی خړئ

22 امازئ جونه چه ښان کانډِ سُنبال
د عاشقو زړونه سکنړی په چړئ

23 د ګندپ جونه پښمینی سینی ګرزی
قران خوانی ډِی له ښیځی مُلانړئ

24 سمیوالی جونه ډِی اصلی بلبلی
ستړ کانډِ د خلوت په کوټنړئ

25 دَ بنیړ د جونو څه به درته وایم
موړ به نه شم که ئ کړم یوه نوړئ

## 108

### CHANSONS DE NOURRICE ET BERCEUSES.

### I

اَلهو تاسو مه راځئ غلو
هلته یو صندوق ډك ډی د مصرو
اَلهو تاسو مه راځئ غلو
څما بچئ داسی اوده ده لکه ګُل په ننداړو
اَلهو تاسو مه راځئ غلو
په کوزه چنه مه راځی په بری چنه رو

نغد د سیکه کړه وو هغه ئې واخستل هغې ښځې د خپل ماشوم ستړکې
توری کړې او په ژانګو کښې ئې پریښود ځخپله له خپلو ورونړه سره یوسفزو
ته روانه شوله او د سیکه ټول مال او چه څه ورکړه روکه وَه هغه ئې له
ځان سره راوړه

1 تاتئ زنګوتئ مه راځئ غلو په کوزی لاری مه ځئ په بڼی لاری رو
2 تاتئ زنګوتئ دننه دواړه سبی دی هغه مِرتړلی په نارو
3 تاتئ زنګوتئ په کړونجی باندی منګی دِی هغه پټ په کټورو
4 تاتئ زنګوتئ دننه بړوتی دی هغه ډك په اشرپو
5 تاتئ زنګوتئ یږ دلی اوده دَی تاسو راشئ په رورو
6 تاتئ زنګوتئ کافر شراب خوړلی خبر نه دَی په راتلو
7 تاتئ زنګوتئ اوس که دی خبر شی خلاص نه شی په خوارو
8 تاتئ زنګوتئ کافر دی شراب خور نه خبریږی په نارو
9 تاتئ زنګوتئ ماشوم به دلی پرېږدم نه به ژاړم په زارو

## 109

PRIÈRE FUNÈBRE.

## هرکله چه څوك مړشی نو ښځی په مړی باندی دا اسم ذات وایی

1 باغ د زیړو ګلو پاك حضرت په کښې ولاړ دَی مخ ئې پښمدار دَی
رنګارنګ جامی آغوستی په جنت ورکډیده
د طوبی ونی دلاندی یو کوچ وخیکیده
مومنان به پری اودس که کمبختان تری تیریده

2 رب دِ راوله د رب دوستـه په امت دِ ډیر ضرور دَی
ستا مخ له سپوږمئ سپین دَی پاك رسول د خدائ نیازبین دَی

## VI

• اخ دنگه دنګ دنګ دی دَ پوزی سره دِ نرڅور
مور دِ به تا نه شی رنځور    پلار به تاپسی چور چور
په وُنو کښِ چندنړی    په مرغانو کښِ باتور
په غوټو کښِ ښائیسته وی    په دارو کښِ نرڅور

## VII

خوک خوک بِړ دَ ګاواز د ګاواز به لیندی ولی
خدایَ هسی زوی ورکی چه آبا آبا کوی
په شودوئ لنبوی    په غوروئ غوروی
جماعت لره ئ بولی
ملائ لولوی    طالبان ئ ښکلوی

## VIII

### LA BERCEUSE DU SIKH.

نقل دی چه د سیکهانو په بادشاهت کښِ یو سیکه له یوسفزو نه یوه پیغله جینئ په زور خپل وطن ته بوتله یو کال پس د هغی جینئ ورونړه خبر شول چه خمونږ خور هغه سیکه لاهور ته بیولی دَه د هغی جینئ څلور ورونړه وو څلور واړه لاهور ته لاړل چه هلته ورسیدل نو د هغه ظالم سیکه د کور حال ئ معلوم کړ چا ورته وُوِ چه د سیکه یو زوی له هغی پښتنی نه هم پیدا شوی دی دوئ ډیر خپه شول چه د هغه کور ته نژدی شول نو خپلی د خور څلور واړه ورونړه وپیژندل هغه درنګ څښتن ئ شراب څکلی وُو بی هوښ په کټ کښِ پروت وُه دغی ښځی خپل ماشوم په زانګو کښِ واچوه او په اشارتونو او په دغو سوتونو ئ ورونړه بوه کړل چه ورونړه ئ بوه شول نو دننه راننوتل هر څه چه

# 110

## PRIÈRE FUNÈBRE.

هرکله چه څوك د چا خپل مړشی نو پس له مرګه هغه مړی ته داسی اسم ذات ښځی په ځان کښِ وایی

1 الله دا ستا مینه په ما خما په تا ډیره ده
د باباق صاحب تلقین لګه تیره توره ده

2 د زنکندن په تلخئ بند شه الله پیر بِر راولی راباندِ
ایمان بِر سلامت شه حضرته زیری بِر درباندی

3 ډیوه بله لره طالبه چری مړه درڅخه نه شی
د آخرت ځخئ دِی ګرانی چه تیاره درباندِ نه شی

4 میراثیان دِی کورته راشی کور ئ روان دی
هئ هئ ارمان دی وئ الله ارمان دی

5 وروکی د لوبو په ارمان تلی دنیا ویران دی
وئ الله ارمان دی

6 زلمی په بریتو لاس وئ لحد ګران دی
وئ الله ارمان دی

3 ژړلي خان ژړلي تاله نوم بللي
اروح به لاړ شي پچپل مقام شي
صورت به پروت وي د خاورو سلي

4 ژاړم فریاد کومه غواړم دیدار د الله   له جنته شغله راغله
په صاحب باندې غورېږي
د صاحب شکلی بشر دی   له دنیا نه پناه کیږي
مور وپلار ورته ولاړ دي   لاس د هیچا نه رسیږي
دواړه لاس په نامه کیږده   بند په بند به خاوري کیږي
دواړه سترکی که راپورته   ستا به تور لیمه رنډ یږي
د لحد کتمی درنی دي   معصومان تري لاندې کیږي

5 خدایه ما ته ولیدی   تولئ مرد نبي ولیدي
غوښي مرغو خوړلي   د کور سختي مرنه لیدی

6 حبیبه راشه دیدار ئي کوره   دیدار ئي خوږ دی تر نعمتونو
جنت ئي جوړ کړ په زیړ کلونو   په کښ روان دي صیقل سندونه

7 سحر دی صبا کیږي   ستا د نور شمال وربیږي
غافلان په خوب نه مریږي

8 ربه لا اله بنه دِ نوم دی   ستا د باغ چاپیره ګرزم بنه
بنه دیدار د الله کوم دی .
الله موجوده خدایه جدا مِ نه کړي له تا
که زه جدا شم له تا زه به سودا کړم له چا

ای خمـــا وروره دا زمان　　تـه له مـونـږ شـولی روان
پـه طـرف د کـورسـتـان　　هـئ افسـوس ارمـان ارمـان

خما خوږی ګل پـه سيـری　　جـونـه نـه وی داسی نـوری
څکه ژاړ کړم پـه سرتوری

خما موری ګل رنګينی　　تا بـه ساتـم زه پـه مـيـنی
غـورزوم دربـسی ویـنی　　خـلـبقـه پر تـوله وينی

خما واك د سر خو ستا وه　　څکه بادشاه راتـه ګـدا وه
د بادشاهـت عمر خـو دا وه

ای خـمـا لـور نازولی　　پـه بشـه شان پر تـه پاللی
اوس له مانـه جـدا شـولی　　دا دنـيـا د ارمان ځـائ دی

## 112

MIÇRAʿS.

### مصرعها

۱　نـنـګ وناموس کـه سـرومال دی
دیار پـه دو سـتـرګـو واړه ورکـومـه

۲　سـر پر وهـئ مال پر تالا کـړئ
دآ شنا دوه سترګی بشکاره خون بخـمـه



IMPRIMERIE NATIONALE.

7 هغه طالب چه په مانړی تـلی دی را به نـه شی
تمام جهان زه پری ننواتی کړم بچلا به نه شی
اخون قسم کوی یحیا په شان پیدا به نه شی

8 راغی له معراجه تاج په سر اخر زمان نـبی
قربان دکل په شان نبی

9 غړشه په مکی کښی چه پیدا شه پیر سلطان نبی
قربان دکل په شان نبی

10 راغی جبرائل نبی عرش تـه روانـیـږی نـه
سور شه په دلدل یاران ئی خـوشحـالـیږی نـه

# 111

## VOCÉROS.

چه د چا ښځی پلار یا مور یا خور یا ورور یا خښتن یا زوی یا لور یا بـل
خوك خپښ مړ شی نو د وېر په وقت هغه ښځه یو صوت وایِ او هـړی
ورته په کټ پروت وِی او نوری ښځی تر کیر چاپیره ناستی وِی چـه
صوت هغه ښځه خلاص کړی نوری ښځی په ژړا سر شی په دی شان سره
تر یو ساعتَ پوری د مړی خپښانِ ښځی صوتونه وایِ او نـوری ښځی
چه ورته ناستی وی ژاړی هغه صوتونه دا دِی

ارمان ارمان دَی خـمـا پـلارَ بیا به دِ و نـه وینم پـلارَ
دا دنیا در باندِ ورانه شوه له واره

12 خما صنمه غنچه نمه
ستاسو له چه نن خالی راغلی یمه

13 ʻچه ستا د زلفو نسیم راشی
په ما صبا شی لکه گل په بېړ تازه شم

14 خط مې خراب الفاظ کچه دی
مناسب نه دی چه دیار دلبار له ځی نه

15 کاغذ بخت دې مبارک شه
خما له یار سره به وکړی دید نو نه

16 د آشنا مینه خزانه ده
چه خزانه چا څخه وی بادشاه به وی نه

17 زه لیونی یم واوری خلق
د معشوق په در ولاړ فریاد کوم

18 آشنا مې پاتی په وطن شه
زه مسافر په لاری خم خلگئ کوم

19 په جړا جاړ سود مې نه شی
یو مسافر شوم بل له یار جُدا شوم

20 چه ستا د مخ نښی په کښ وی
باغ له به خم په هغه گل به ویر کوم

3 سرخ دِ لبان سپین دندان دی
تا ته حیران دی ملائک د آسمانونو

4 سرخ پر لبان سفید دندان دی
له تا قربان دی بل تنه خاورِ آچوم

5 رازه چه بیا سره پخلا شو
مرگ راپسی دی نیمه خوابه پاتی شونه

6 په قسمت شکلی به نور نه شی
که وچی ونی زرغونی په اوښو کړمه

7 که اسویلی له خولی وباسم
په دی نړدو کلو به اور ولگومه

8 خما یاره خدائ د پاره
جلئ پر واوره لیونی دریسی شومه

9 سلام دِ راغی ته رانه غلی
وا به دِ نه خلم ی دیدنَ سلامونه

10 کاغذ پر بشکه آشنا را یاد شه
اوښی پر لاړی دکاغذ په بیاضونو

11 کاغذَ ورشه برابر شه
په بی پروا آشنا پر وایه سلامونه

30 اَخر به خاوری شی صورته
ما د آشنا سترگی نا آشنا لیدلی دینه

31 دشمن ته خانده هو سیره
دوست ته په پته وژاړه چه دوب شومنه

32 یو ړهغه سړی دشمن دی
چه دی به پاؤ وی ځان به سیر حسابوینه

33 یو خوږ دا نصیحت واوره
چه له پخلا دښمنَ ځان ساته مینه

34 که دیدن کړی تلوار وکړه
په ما خادر د بیلتانه وغوړیدنه

35 که دیدن کړی تلوار وکړه
لحد بندی شه تختو واخستل میخونه

36 که دیدن کړی تلوار وکړه
بیرئ گدیړی په سنگاونړ ولاړه یمه

37 خما به خنکه رنگ تازه شی
چه د اندیښنی ړآغوستی خوراك غونه

38 د بیلتانه پیتی په سر دی
زه به دمه دَ اندیښنو کندوله وړمه

21 رنګ ته مې ګورئ حال تې زده کړئ
زه له خبرو بېلتانه وېشتلی يم

22 آئېين مې ښله مخ ته نسئ
آشنا ښما په خوانیٔ اور ولګوٌنه.

23 خيال دِ په خوب کښِ را حضور شی
په شپه مې وِېښ کړی تې صبا خلګیٔ کومَ

24 ما ورته وِچه بيلتون شته دَی
خانمّا يار به راته شين له خندا شه نه

25 چه افضلی برښ شوی جوړی
خسنړی وشه غم ښما ورسيدنه

26 اسلام عليکم زه درنه لاړم
بيا به ديدن په اَخرت سره کوونه

27 په تور لحد کښِ به ناری کړم
زه له دنيا نه ارمانی راغلی يمَ

28 که تور لحد ته نری لاړ وی
ما به آشنا له پيشکشی وړل ګلونه

29 يوه په چيغ نعره به وکړم
په هغی ورځ چه دَ آشنا له کلی ځم

48 په سر سالو انبيل په غاړه
په بام ولاړه آزاره وي دخلقو زړونه

49 ګيا به دِ نوم ځله واخلم
بيګاه د مور له دروازي شاړلي يم

50 ما له لاس مه راوړه بد کيږي
زه پرديسی آشنا په خدای سپارلي يم

51 دا د اشرفو عالمو کار دی
د پرديسی آشنا په پټ کښِ ناسته وي

52 پلو له پسکي نه راکاږي
خما ګمان د ميلمنی ور بندی شنه

53 دغه ګمان د خطا نه دی
چه معشوقه عاشق له ځي ميلمنه وي

54 خما د کټ بازو دِ مات که
راغلي مه وي د باندي کناتوره

55 عرضي مِ واخله کشيو نيره
د سپيني خلي فريادي راغلي يم

56 مخ دِ سنګر غاښ دِ رفل دی
دا شينکی خال د کشيونيم حکم کوي

39 د بیلتانه په مدرسه کښې
واړه لوی د جدای سبق وایینه

40 د بیلتانه را سره خه دی
مچه هر زمان پر زړوی په کور د ننه

41 د بیلتانه په دیگ کښې پوخ شوم
د اندیښنو په تباخ پروت غاز پر خوری

42 اول پر خدائ اسره بیا ته وی
ثواب دِ را کړ خپل نصیب پر زړه وی

43 ما چری غم لیدلی نه وه
اوس پر دوتړ شه گروندی په کښې کوم

44 هجران جهان په ما تورتم شه
یره مشال د جمال پورته که روند شوم

45 په جوارئ کښې پر یار بائیله
اوس به سپیری منگلی خمر له میدانونو

46 باغچی سمسوری شوی د گلو
طوطی وختی لختی پری سم ترلی دی نه

47 یا به ارمان دریسی وکرم
یا به په چیغو رابسی وژاړی مینه

66 دا خوله به خاوړِ دله درکړم
تا په تخت کښِ راته خور ویلی وُونه

67 •ما درته خور ویلی نه وُو
دادا دِ ناست وُه له وربوزه ئ وشرمیده

68 په دیوال هسکه شه خوله راکه
یو څوولتیا دَه بل منت دوته کومه

69 راشه راشه چه خوله درکم
بیکا مِ مړ په خوب لیدی زهیره وُمه

70 دَ سپینی خولی دِ داسی خوند دی
لکه چه وچی ریږئ خوږمړ د بازارونو

71 دَ سپینی خولی مزه دِ یوړه
چه توئ نه کړئ د هیرو به دیوانونو

72 که خوله دِ راکړه څه به وشی
زړه به مِ ړبنه شی خوله به بیا درځه وِینه

73 څما په تشی خندا مسته
که خوله مِ درکړه لیونی به شی مینه

74 عالمه روغ ئ لیونی کړم
د جانان سترکی دِی د چرسو چلمونه

57 خدائ دِ باغچه کړه د ګُلابو
چه هر سحر دِ اميران سلام کوينه

58 غنچه چه ماته شي ګل وچ شي
زلف چه ماتي شي په مخ جوړ شي شپلونه

59 خما دَ ګل په شانِ ياره
په ناچارئ له ما نه پاتي شوی مينه

60 خما دَ ګل په شانِ ياره
زه به زړکی له تا نه خنګه صبرومه

61 جانان بِر ګل له لاسه نه آخلي
د آسمان ستوري به جرګه وله ليږمه

62 ما له جولئ ګلونه راوړه
زه به وربل دپاسه چتر جوړه ومه

63 صاحب ئ ګل سيدو ئ باغ وُه
ګل چه تازه وُه بلبلان وله راتله نه

64 يار بِر هندو زه مسلمان يم
له ديري ميني په چوکي ور وختمه

65 دا مسلمانَ شه خوله راکه
نامردي پريږده د هندوانو مذهبونه

84 مخ دِ کتاب شوندي دِ پاڼري
په مطالع يې ورته مات کړل زنګنون

85 مخ د شجر حُسن شمر دی
يدين رجلين يې لګوم شمر به خورمُ

86 غريق په بحر د عصيان شوم
ستا د غفران کشتۍ ته ډير اميدوار يمَ

87 ستر ګې دِ سری جورِ جړلي
د کور کافرو در ته څه ويلي دِ ينه

88 سترګی دَ سترګو ملاحضي که
زړه چه مين شي ملاحضي کله کوينه

113

PROVERBES.

## متلونه

1 ارزان بې علتَ نه وی او ګران بې قيمتَ نه وی

2 آس ئې هغه ته ور کړ چه تانګ ترل ئې نه زدَه

3 اصيل ته اشارت کم اصل ته ډانګ

4 اوربشی که شل منَ د روپئ وِی د خر به حق کښِ بوه ليه دَه

75 جانان پر دنگ زه مندری یم
دَ دیدن ځائ له کړانوی په ترخ کښې ورمه

76 په مقبره دَ مړو راغلم
مما وِ سلام دی یار وِ نه آخلم سلامونه

77 لحد ئ بنه جوړ که اُستازه
خما آشنا به په کښې عمر تیره وِینه

78 ما د وصال عرضی کوله
د بیلتانه منشیانو مات کړل قلمونه

79 د وصال بادشاه پیدا شه
زه به عرضی د بیلتانه په سر کومه

80 که په منت که په زارو وئ
ما به آشنا له بیلتانه خلاص کړی وُنه

81 د بیلتانه فوځونه راغله
خما د زړه په سر چهاونړی آباده وِینه

82 زړه مِې له شین کانړی نه سخت وُه
بیلتانه رورو سولَوُه کاغذئ که نه

83 مخ دِ کتاب شوندی دِ پانړی
دا توری زلفی دِ حاشی بِ بشکلی دینه

22 خه کوته پناه خه غړ پناه

23 ځای هغه سوځی چه اور ور باندِ بلیږی

24 چه په مکورو مرِی په زهرو ئې مه وژنه

25 چه تیغ چلیږی وینی بهیږی

26 چه خوك هاتیان ساتی نو دروازی دِ دنګی لری

27 چه چنړی وی هلته غابښونه نه وو
چه غابښونه وو هلته چنړی نه وی

28 چه شپه تړ مینځ وی له هغی بلا نه ویریږه

29 چه حقانی مینه ئې نه وی مین دِ نه شی د ملا په تاویزونو

30 خپل آواز هر سړی لره ښاز دَی

31 خپل خپل وطن د هرچا په حق کښِ کشمیر دی

32 خپل عمل د لارِ مل دَی

33 خر ښکرونه کتل غوږونه ئ بائلل

34 خر سپی د شرمښ ورور دَی

35 د آس لته آس زغمی

36 داسی کوه چه مار هم مرشی او لوړ هم مات نه شی

37 د قبر خاوره په قبر لری

5 اورله راغله دکور میرمن شوه

6 پر ږی څلیښتَ نه خښیږی

7 پنځه واړه ګوتی په خوله کښِ مه منډه

8 په الاڅ دِ لوی ګری اوس په ختو کښِ بند شوی

9 په خوله خور په نیت کور

10 په ډیرو قصبانو کښِ غوا مرداریږی

11 په ډیرو خبرو لیونی خوښیږی

12 په وچه زمکه لانبو وهلَی نه شِی

13 په ویر کښِ هر څوك خپل خپل مړی ژاړی

14 په هر سوری کښِ ګوتی مه منډه

15 پیاز دِ وِی خو په نیاز دِ وِی

16 په پادشاهانو بانډِ خیر عواړی

17 تور په صابون نه سپینیږی

18 توره په کتو ده غشی په ویشتو ذَی

19 څو چه کار پوره نه وِی هسی مه وایه چه پوره ذَی

20 څومره چه د برستن وِی نو دومره پښی غزوه

21 څه چه کری هغه به موی

55 لکه میندی هسی لونړه

56 لا سیند راغلی نه دی او بُڼډی ورنبئ وهي

57 ویړ له ډول سره نه شي

58 ویش کوه سړو ته گوره

59 یتیم د ژړا عادت دی

60 یوه بلا بلی ته وايي چه بو

## 114

### ÉNIGMES.

1 مور ئې پیدا نه وه زوی ئې پاس په کوټه گرزیده

2 یو داسی شی پر ولید زر ئې وخوری بیا ئې ئې که اوبه
څکی په ښنکونو

3 اوړه په ډیران ولگیده لوړی له ډنډه خیژی

4 یوه ښځه شوه لنگه لور ئې واوړه امیدواره
هغه مور ئې پرِ دائ شوه لور ئې واوړه له کُفارو

5 چه له خور سره نکاح کړی دا کافر نه دی په شرعه
ورشی وگوری کتاب

38 د میښی ښکر که ستر ډی نو په خپل سر ډی

39 دوطن سوبه دوطن سبی نسی

40 د خدای په کرو لاس هیڅا نه رسیږی

41 ډوبه دنیا ده ډوبه به لاړ شی

42 ړوند له خدایَ څه غواړی خو دوه سترګی

43 شپه تر میانَ خدای مهربانَ

44 غل په غل پوهیږی مل په مل

45 غوا که توره ده پیَ ئ خو سپینی دی که نه

46 غوښی که خوارِ وِی نو له پیتی نه خوښی ډِی

47 که تږی وِی بخپله به اوبو له راشی

48 که څرك بانګ نه وائ نو هم صباح به شِی

49 که ډیر هوښیار ئ کمعقل وپوښته

50 که غوا راغله په پیَ ډیره ښه که را نغله نو پردی

51 که کور ړِ وسه نو خندق خوړ پوخ شه

52 که یوه سترکه دِ ړنده ده په بلی لاس کیږده

53 کوڅیَ دَ بل په لارِ کښِ مه کنه په خپله به پکښ پریوزی

54 لکه چه آسمان غریږی هسی نه وریږی

4 سکهه ورته ویل دلاسه مه کړه سلامی شه
د جنګ طاقت دِ نشته پر شتنی کلامی شه
راجه ته سلام وکړه په توبهٔ په عاجزی شه
دا ملك به تاته بخش کړم له بنو تر نپلابه

5 غازی دلاسه وی خما په کار نه دی مکلونه
غزا درسره کړم په کار می نه دی منصبونه
که چری شوم شهید الله به راکهٔ جنتونه
دنیا وارهٔ فانی ده چه پیدا یو له ترابه

6 د سکهو لشکر راغی دلاسه وته ډیره شه
شپه او ورځ یارانو په جکړه او په ډنکه شه
جنګ ئې په توپو که دلاسا ورته تکړه شه
لویه زلزله وه ویرکی جینه شول بی خوابه

7 غزا ئې د کافرو سره وکړه په قلعه کشی
صفت به ئې کوم چه خدای رحمت په دلاسا کړی
شکر د وی خدایه چه شه پا ته په پرده کشی
ته ئې مبارك شی د هغه جهان منصبه

8 غزا ئې دکافرو سره وکړله غازی شه
کوری یارانو ذالفقار د شیر علی شه
صفت ئې تول عالم که کناهو نونه چاندی شه
جنت حوری ئې خیلی کړی رښتیا دی له کتابه



IMPRIMERIE NATIONALE.

# APPENDICE.

## TEXTES DE BANÚ.

### COMMUNIQUÉS PAR M. THORBURN.

---

## 115

### DILÂSA KHÂN ET LES SIKHS.

BALLADE.

### چهاربیت دلاسه خان

1 غزا ئې له کافرو سره ډیری وکړی رټه
په ورځ د آخرت دلاسه خلاص کړی له عذابه

2 سکهه ورته ویل چه راوتلی یم په ننګه
نور خلق مې رعیت کړه دلاسه ته خم په بلنګه
پیسه نه راکوی کوټ او قلعه به ئې کړمه ړنګه
که لژکې ورنژدی شوم دی به کړم سینه کبابه

3 غازی دلاسه وی سکهه له تانه نه وریږم
تندی مې درته ونیو په غزا د خوشالیږم
نظر دی د پیرانو په کافرو تل بریږم
یوکس به د پری نږدم تر اټکه تر پنجابه

## IV

1 دشاه دمخ خالونه ماکنړلی اته دی
که یوځنی خطاکړی له ایمانه ئې واته دی
2 پنځه خاله ئې کوره چه ئې ښی په تندی دی
ددی پنځو کتل هم په بینا هم په ړانده دی
3 هم نور ئې دری خالونه پاس د زنې په سر کوره
خواران ځنی محروم دی دولتمند په کاته دی

## V

له غاره وزی په غار ننوزی
نه ئې سترګی وینی نه په لاس کیوزی
که د باغ ګل شی
که تندر غونډی پریوزی

## VI

ئې بڼړو ئې وزرو دمړ غه غونډی پرېږی
ښی جونه پڅ خوښیږی
سندری ئې لذت که دنتوی په شان ګډیږی
جاهل به نه پوهیږی

9 غزا ئې له کافرو سره وکړله غازی وه
لښکر د بنوخیو ورسره کښلی چاندی وه
سراج وائي بیتونه په هندوانو عادتي وه
سکهان ئې کړه په مخه ځي به چرې بې مذهبه

# 116

## ÉNIGMES.

### I

عجب ښځه مې ولیده چه دوه ددې خمن وو
هم دواړه ورونړه په هغې ښځې مین وو
له مور سره ئې وکړله نکاح دوی ئې خښتن شول
په حکم د کتاب هم پرې روا هغه خمن شول
آسانه معمّاره هر سړی چه نه پوهیږی
خیله خور د کوری چه تر دویو لاندې کیږی

### II

نشان غونډې شان دی    جنډې ئې معلومیږی
په ملا ئې توشه‌دان دی    وجنګ ته طیاریږی

### III

له پاسه راغله سره سترګه    په وینو کښې په خه سترګه
که خورم ئې کافریږم    که ئې نه خورم رنځوریږم

## VII

عجب شانه یو شی دی په تعبیر ئ نه پوهیږم — ته غور باشه ای یاره
نه خوله لری نه غاښ نه ئ سر نه کلمی شته — خوراك هم برابر که
نه کلی نه ئ کور نه ئ لاس نه ئ پښی شته — کرزیدل هم لر و بر که
نه ملك لری نه مال نه دفتر نه ئ قلم شته — همیش کرزی په جنك
په ورځ په شپه ئ شور دی نه ئ سا او دم شته — هر چاته به شی بلنك
په دی چه نه پوهیږی هغه خر زه پر سوریږم — عاقل نه دی هوښیاره

## VIII

نه په زمکه نه په اسمان دی — نه سړی دی نه حیوان دی
په پاسته ځای ئ مکان دی — هر سړی ورته حیران دی